د ميرمنو
دحج مسائل
ليكوال: مولانا محمد رفعت قاسمي
د ديوبند د دار العلوم مدرس
ژباړن: عبدالله ګل "ريان"
مكتبه رشيديه
سرکی روڈ کوئٹہ فون: ۲۶۶۸۲۵۷، ۲۶۶۲۲۶۳

د قرآن او حديث په رڼا کې

# د ميرمنو

# مسائل

يکوال: مولانا محمد رفعت قاسمي

د ديوبند د دارالعلوم مدرس

ژباړن: عبدالله ګل "ريان"

خپرندوی: رشيديه کتابخانه، کوټه

دکتاب ځانګړتیاوې:

دکتاب نوم: دمیرمنو حج

لیکوال: مولانا محمدرفعت قاسمي

ژباړن: عبدالله ګل "ریان"

کمپوز: سواد فرهنګي ټولنه

کمپوزر: بشیراحمد "ریان"

تصحیح کوونکی: مولوي سفرمحمد "عابد"

دچاپ کال: ۱۴۳۱ه‍ ق ۱۳۸۹ المریز

خپرندوی: رشیدیه کتابخانه، کوټه

## فهرست

## انتساب

زه مې ددي تحقيق (دميرمنو لپاره دحج مكمل او مدلل مسائل) خپلې ګرانې مرحومې خورته، په منسوب كولو نيكمرغي ترلاسه كول غواړم. هغه چې د ۱۴۲۹ هـ ق كال دمحرم الحرام په ۲۶ نيټه (۴- فبروري -۲۰۰۸م) وفات شوه. له خوېندو څخه دهغې لپاره دثواب او درجو دلوړتيا ددعا غوښتنه كوم .الله تعالى دي له هغې سره درحمت او مغفرت ، عفو او بخښنې او خپل خاص كرم او فضل معامله وكړي.آمين.

(محمد رفعت قاسمي)

# دلیکوال عرض

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم!

زما په ترتیب شوي کتاب (دحج مکمل او مدلل مسائل) کې دمیرمنو او سړیو لپاره ضروري مسائل راغلي دي، خو ددوستانو مشوره دا وه چې میرمنې به ددې پیړ (ضخیم) کتاب څخه څرنګه ګټه واخلي، له همدې امله مې په دې کتاب (دمیرمنو لپاره دحج مسائل) کې د میرمنو په اړه مسائل بیل کړل. مثلاً دمیرمنو لپاره دمحرم شرط ولې دی؟ چاته محرم ویل کیږي او څوک محرم کیدلای شي. له محرم څخه پرته حج ته تلل، دحج لپاره دمیرمنو یوازي سفر کول، دمیرمنو احرام به څرنګه او څومره وي. دحج په وخت کې دمیرمنو بې احتیاطي، میرمنې به حج څرنګه کوي؟ که دحج په ورځو کې یې حیض یا نفاس پیښ شي، دهغوی په هکله ضروري مسائل. میرمنې به له احرام څخه ده تلو په مهال څومره ویښتان اخلي؟ له میرمنو سره که واړه ماشومان وي، دهغوی دحج په هکله ضروري مسائل.

لنډه دا چې له کور څخه نیولي، دحج په مهال او بیا کورته تر راتګ پوري، الحمدلله ټول ضروري مسائل پکې یو ځای شوي دي. رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّکَ اَنْتَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ.

دعا غوښتونکی، محمد رفعت قاسمي غفرله

ددیوبند خادم

۵ ذي قعده ۱۴۲۹ (مطابق ۵ نومبر ۲۰۰۸)، دجمعې شپه.



ددیوبند ددارالعلوم شیخ الحدیث او صدر المدرسین فقیه النفس مولانا مفتي سعیداحمد صاحب مدظله:

# تقریظ

اَلْحَمْدُ للّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ والصلوٰة والسلام علیٰ عبده و رسوله الکریم محمد رحمة للعلمین وعلیٰ آله واصحابه اجمعین.

اما بعد: ماته دخوشحالي ځای دی چې، محترم ورور، د دیوبند ددارالعلوم استاذ، مولانا قاري محمد رفعت صاحب د (میرمنو لپاره دحج) مفصل احکام ترتیب کړي دي. نوموړی ماشاء الله بریالی دی، دهغه په قلم ډیر کتابونه لیکل شوي دي او په عام او خاص کې مقبول دي.

له همدې امله، پوره هیله ده چې دا کتاب (دمیرمنو لپاره حج) هم هغسې بلکې تر هغه لا ښه شي، ځکه انسان هره رانلونکې ورځ دپرمختګ پړاوونه وهي او دښېګڼو لورته په مخ ځي.

دعا کوم چې همدا کتاب هم دخدای تعالی په دربار کې دقبول شرف حاصل کړي او امت ته یې فیض ورسیږي.

کتبه:

سیعد احمد عفی الله عنه پالن پوري

د دیوبند ددارالعلوم دمفتي،مولانا محمود حسن بلند شهري صاحب

## تقریظ

**الحمدلله الذي وفق من شاء من عباده من المؤمنين والمؤمنات لاتمام الحج والعمرة من العبادات والصلوة. والسلام على عبده سيدنا ونبينا محمدالذي بين المناسك والاخر من احكام الدين وعلى اله وصحبه الذين قاموا بالدين القويم وعلى من تبعهم باحسان الى يوم الدين. وبعد!**

دسپیڅلي شریعت داحکامو په ځای کولو کې چې، غفلت کیږي ، بیخي ښکاره ده. همدا وجه ده چې، مسلمانان هره ورځ مخ په ځوړ روان دي. الله تعالی دې ټول مسلمانان په سلیم فهم سره ونازوي .له ذلت او سستې څخه دې وژغوري. په ځانګړې توګه دحج او عمرې په څیر په مهمو عبادتونو کې کموالی ورځ په ورځ عامیږي ، له دنیا څخه ضیوف الرحمن(دالله تعالی میلمانه) او محرم زایرین ډلې ، ډلې په ډیر شمیر کې حرمینو شریفینو ته رسیږي ،خو هغه برکتونه او ثمرې چې ورڅخه ښایې هغه یې دنیست په درجه کې دي. په دې کې په ځانګړې توګه هغه کمښتونه چې د میرمنو له لوري کیږي، ډیر وخت خو دحج او عمرې روح فناه کوي. که یې په اصلاح کې غفلت وشي ،نو ویره ده چې داسیلاب



دخطري په څیر ولیدل شي. خدای جل جلاله دي وکړي چې خوینديې حج او عمره سم وکړي. له ګټو او برکتونو څخه یې برخمنې شي او بیرته خپلو کورونو ته راوګرځي.

له همدې امله دا کتاب (دمیرمنو لپاره دحج مکمل اومدلل مسائل) انشاء الله دلارې مشال(مشعل) ثابتیږي. ما دا کتاب له پیله تر پایه وکوت ، لیکوال یې ماشاء الله په خورا ښه طریقه دحج او عمرې ضروري او مهم امور راټول کړي دي. که دمیرمنو دحج اراده وي او دا کتاب ولولي دییا ، بیا اوریدلو او اورولو اهتمام یې وکړي او نورو میرمنو ته یې د وراورولو معمول وګرځوي. انشاء الله دهغه ثمرې ، برکتونه او ګټې به په خپله ووینې. مسلمانانو سړیو ته یې هم لوستل ، اوریدل او اورول او په خپلو کورونو کې یې لارښوونې میرمنو ته ښودل، له ډیرو ګټو څخه خالي نه دي. که خلک دې لور ته پاملرنه وکړي، په حکمت او بصیرت سره میندې ، خوینديې وپوهوي نو کتاب به د (مشک آنست که خود ببوید نه که عطار بگوید – مشک هغه دي چې خپله یې بوی کړي نه دا چې عطار و وایي) مصداق وګرځي. فقط.

هذا ماکتبه :احقر الزمن العبد محمود حسن بلند شهري غفرله والوالدیه واحسن الیهما والیه.

خادم التدریس و الافتاء جامعهٔ دارالعلوم دیوبند.

ددیوبند ددارالعلوم دمفتي دنائب، مولانا مفتي زين الاسلا
قاسمي صاحب

## تقریظ

حامداً ومصليا ومسلماً !

ددرانه ملګري ، محترم مولانا قاري محمد رفعت قاسمي
صاحب دام فیضه وعم نفعه کتاب (دمیرمنو لپاره دحج مسائل)
مي په توري ولوست . دمیرمنو لپاره یې دمسائلو
غوره لنډیز چمتو کړی دی. انشاء الله ،له دي څخه به میرمنو
ته ډیري اسانتیاوي ترلاسه شي.دهغوی ډیري پریشانی به
ورکې شي.دعا ده چې الله تعالی دا ټولګه هم ګټوره او
مقبوله وګرځوي او نوموړي مولانا ته دخیر بدله
ورکړي.(آمین)

ددرویشانو دپښو خاوري
زين الاسلام قاسمي

بسم الله الرحمن الرحيم

وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ .(آل عمران:۹۷ )

ژباړه: دا الله له لوري، پرهغو خلکو ددي خوني (کعبي شريفي) حج فرض شوی دی چې دلاري توان ورسره وي او چا چې انکار کړی دی نو بايد پوه شي چې الله پاک له ټولو خلکو څخه بي پروا دی.

### دبيت الله دحج فرض کيدل

په ايت شريف کې، دبيت الله درېيمه ځانګړتيا دابيان کړي شوي ده چې، الله تعالی په خپل مخلوق باندي دبيت الله حج کول لازم کړی دی.په دې شرط چې بيت الله ته درسيدلو وس ولري. دوس تفصيل داد ی چې له هغه سره به تر اصلي ضروریاتو دومره څه زيات وي چې، بيت الله ته درسيدلو، بيرته راتللو او هلته دهستوګنې مصرف ولري او تر راتلو يې داهل او عيال ګذاره وکړل شي . دهغوی چې نفقه يې ورباندي لازمه ده. همداسې به په لاسونو ، پښو او سترګو معذور نه وي .ځکه داسې خلکو ته له هيواد څخه تلل او بيرته ورته راتلل مشکل دي. هلته تګ او دحج ارکانو په اداء کولو به ځرنګه وس ولري.داچې ميرمنې ته له محرم

وي، که هغه په خپل لګښت ځي او که دد ي په پیسو حج کوي. همداسې هلته د رسیدلو دلارې حفاظت او خوندیتوب هم او س یو جز دی. که په لاره کې امنیت نه وي، د ځان او مال ډیره ویره وي نو بیا د حج کولو وس نشته.

دحج لغوی معنی قصد کول دي او د شرعي معنی تفصیل قرآن کریم کړی دی چې طواف ، دعرفې وقوف ، مزدلفه او نور دي. نور تفصیل یې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په خپلو لاربښوونو کي څرګند کړی دی. په دې آیت کې د حج د فرض کیدلو تر اعلان وروسته وایي:

{وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ .}

(ځوک چې منکر دي نو الله تعالی له ټولو عالمیانو څخه بې نیازه دی.)

په دې کې هغه څوک داخل دي چې په ښکاره د حج له فرضیت څخه منکر دي ، حج فرض نه ګڼي. د هغه له اسلام څخه وتل او کفر ښکاره دی. په هغه باندې ومن کفر، لفظ صادق دی. خو څوک چې یې په عقیدوي لحاظ فرض ګڼي او بیا له وس او استطاعت سره ، سره حج نکوي هغه هم په یوه حیث تري منکر دی. په هغه باندې دومن کفر، دلفظ اطلاق د تهدید او تاکید لپاره دی چې، دا شخص د کافرانو په شان عمل اخته دی. هغوی چې حج نکوي دې هم هغسي دی. له همدې امله فقهاء رحمهم الله وایي چې، د آیت داجمله، دهغو خلکو لپاره سخت وعید دی چې، له وس او قدرت لرلو سره ، سره حج نکوي، د خپل دې عمل له امله د کافرانو په څیر وي. العیاذ بالله.

(معارف القرآن – ج۲ ص ۱۲۲)



## دحج فضائل او مسائل

حج د اسلام یو ستر رکن دی. د اسلام د بشپړتیا اعلان په حجة الوداع کې وشو او په حج باندې د اسلام ارکان پوره شول. په مبارکو حدیثونو کې د حج او عمرې ډېر فضائل بیان شوي دي. په یوه مبارک حدیث کې راځي :(څوک چې یوازې د الله تعالی د رضا لپاره حج وکړي، بیا نه بده خبره وکړي او نه کومه نافرمانۍ وکړي، هغه داسې پاکیږي لکه له مور څخه دزیږیدلو په ورځ چې پاک وي.)

په یوه بل حدیث کې راځي چې ،له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) څخه پوښتنه وشوه :تر ټولو غوره عمل کوم یو دی؟ ارشاد یې وکړ: په الله او رسول یې ایمان راوړل. عرض یې وکړ، بیا ؟ ارشاد یې وکړ :د الله تعالی په لاره کې جهاد کول. عرض یې وکړ، بیا تر هغه وروسته ؟ ارشاد یې وکړ: مبرور حج ، تر یوې عمرې وروسته بله عمره د دوی ترمنځ وخت د ګناهونو کفاره ده او د مبرور حج بدله پرته له جنت څخه بل څه نه ده.)

په یوه مبارک حدیث کې دي :(پرلپسې حج او عمرې کوئ، ځکه دا دواړه مو له فقر او ګناهونو څخه داسې پاکوي لکه بټۍ چې او سپنه ، سره او سپین زر له خیرو څخه پاکوي ، د مبرور حج ثواب یوازې جنت دی.)

حج د الهي مینې مظهر او بیت الله د الهي تجلیاتو مرکز دی. له همدې امله، د بیت الله زیارت او د رسول الله(صلی الله علیه وسلم) دربار ته

حاضریدل دهرمؤمن دزړه غوښتنه ده .

که دچا په زړه کې دا غوښتنه ونه ځلیږي، نو پوه دې شي
چې دهغه دایمان ریښې وچې شوې دي.

په یوه بل حدیث کې دي : "څوک چې بیت الله ته درسیدلو
زاد (توښه) او راحله (سپرلۍ) لري ، هغه بیاهم حج ونکړي ،
دهغه په هکله دابې توپیره ده چې یهودي ومري او که
نصراني ."

په یوه بل حدیث کې راځي : "دچاچې کومه اړتیا دحج مانع نه
وي ، نه پاچا او نه دناروغۍ عذر وي، نو دهغه اختیار دی
چې یهودې مري او که نصراني." (مشکوة شریف ج ۱ ص ۲۱۱)

دحاجې صاحبانو کاروان چې له کورونو څخه رخصتیږي.
دګلانو امیلونه وراچول ګواکې دحج جز دی، که هغه نه وي
نو دحج لپاره ګواکې تلل عیب دی، خو دتګ په مهال
دخشیت ، تقوی ،دحقوقو داداء ، دمعاملاتو خلاصول او د
سفر دپیل کولو دادابو اهتمام هیڅ نه ترسترګو کیږي. ته به
وایې ددې مبارک سفر پیل له ادابو پرته یوازې په ځان
ښودنه او د ریاء په چاپیریال کې کیږي.

په قرآن کریم کې چې دحج په سلسله کې کومې مهمې
لارښوونې شوې دي، هغه دادي : {دحج په دوره کې نه فحش
خبرې شته ، نه بې فرمانې او نه هم جنګ جګړه.}

په حدیثونو کې هم دمقبول حج نښې داسې ښودلې شوې



دي: [له بدو خبرو او نافرمانې څخه پاک اوسئ .]

خو دحاجې صاحبانو په ډله کې به کم داسې وي چې دا
لارښوونې په پام کې ولري او خپل حج له ډاکې څخه وژغوري
دحاجیانو ددې حالت په لیدلو سره سړي ته دومره تلکیف
رسیږي چې بیان او اظهار ته یې ور الفاظ نه موندل کیږي.

همداسې دحج په سفر کې دمیرمنو بېحجابې هم عامه وي ،
ډیرې میرمنې له سړیو سره دسفر په مهال، لوڅې ترسترګو
کیږي. غضب خو لا دادی چې ډیرې میرمنې پرته له شرعي
محرم څخه دحج په سفرځي، په دروغو څوک محرم ولیکي .
له دې څخه چې کوم خباثت پیدا کیږي (اګر ګویم زبان
بسوزد.) ورباندې ریښتونی کیږي.

ترهغه ځایه چې ددې لارښوونې اړه ده چې دحج په دوران
کې به جنګ او جدل نه وي. ددې منشاء داده چې دحج په سفر
کې، ګڼه ګوڼه زیاته او سفر هم اوږد وي. له همدې امله دسفر
په موده کې دیوه او بل ترمنځ ناخوښه شیان پیښیږي او
وروسې دجذباتو تصادم یقیني وي . په سفر کې دناخوښیو
زغمل ، دخلکو په تکلیف رسولو نه په قهر کیدل، بلکې له
تحمل څخه کار اخستل، ددې سفر ستر کرامت دی. ددې
ستونزو دحل غوره لاره داده چې هر حاجې دخپلو ملګرو د
جذباتو خیال وساتي ،دهغوی درناوې وکړي. دخپل زړه
ښینه ورته صافه ولري که یو دې لاره کې څه ناخوښې ورته

پېښېږي ،په غوړيدلي تنده او لراخه سينه يي وزغمي .
په خپله داهغه وکړي چې چاته څه تکليف ونه رسوي.
له نورو څخه ورته تکليف ورسيږي، څه عکس العمل و
نښيې. دنورو په وړاندې دخپلو جذباتو قرباني په دې س
کې ستره ډالۍ ده او ددې نيک مرغي ترلاسه کولو لپاره
ډيري مجاهدې او رياضت ګاللو اړتيا ده . داچې داسفر
حقيقي محبوب په لاره کې وتل دي، نو ددې سفرهره شې
ارزښتناکه ده او شيطان هڅه کوي ترڅوستاسو وخت ضا
کړي.

څرنګه چې دحج دسفر دسامان او لوازمو دچمتو کول
اهتمام کيږي، تر دې زيات دحج داحکامو او مسائلو دز
کولو اهتمام ضروري دی. که ترسفر وړاندې همداسې مو
ونه موندله شي،لږترلږه دسفر په دروان کې يې اهتمام وش
په هره موقع کې له کوم عالم څخه پوښتنه کيږي او په هغ
عمل وشي. په دې مبارک سفر کې له ټولو ګناهونو څخه ځ
وژغورل شي . دټول عمر لپاره له ګناه څخه دځان ساتلو ع
او هوډ وکړل شي او په دې هکله له الله تعالی څخه خاص د
وغوښتله شي. داخبره په ياد وساتله شې : دمقبول ح
علامه داده چې تر حج وروسته دانسان په ژوند کې بدلو
راځي. څوک چې تر حج وروسته هم فرائض پريږدي
دناجائزه کارونو مرتکب کيږي، دهغه حج قبول شوی نه دی



ډير وخت په حرم شريف کې تير شي ، له ډيري اړتيا پرته په بازارونو کې هيڅ ونه ګرځي .ددينا سامان ګرانه يا ارزانه ، ښه يا بد ، په خپل هيواد کې هم موندل کيږي ،خو دحرم دنيک مرغي دترلاسه کولو موقع بل ځای نه ترلاسه کيږي . هلته داخستلو اهتمام مه کوئ.

داچې په دې حج کې دنړۍ دهرې ګوښې خلک راځي، نو هرڅوک چې هرڅه کوي ، هغوی ته په کتلو کوم عمل پيل نشي. داپلټنه وشي چې آيا داعمل له حنفي مسلک سره سم دی، کنه؟ مثلاً دامسئله :

دسهار له لمانځه وروسته تر اشراق پوري او دمازديګر تر لمانځه وروسته بيا تر ماښامه پوري، دطواف ددوو رکعتونو اجازه نشته .همداسې په مکروه وختونو کې يې هم اجازه نشته . خو ډير خلک نور وينې او دالمونځ کوي.

لنډه داچې يوازې خلکو ته په کتلو کوم عمل ونشي. بلکې له علماوو څخه په مسائلو کې پوښتنه او پلټنه وشي.

(آپ کے مسائل اور ان کا حل ج۴ –معارف القرآن ج۱ ، معارف الحديث ج ۴ کتاب الحج ، الترغيب والترهيب ،مظاهر حق علم الفقه ج۱علي المذاهب الاربعه ج ۱،کتاب الحج وفضائل حج.)

*******************

# دحج ترسفر وړاندې ضروري کار

مسئله : دحج سفر په هر اعتبار خورا مبارک سفر دی. په
دې مبارک سفر او مبرورحج ، ډیري ستري، ستري وعدي
شوي دي. انسان داسي مبارکو او سپېڅلو ځایونو ته ځي
چي هلته ددعاوو دقبول وعدې شوې دي. نو تر دې سفر
وړاندې له خپلوانو او دوستانو سره لیدل او له یوه بل څخه
ددعاوو غوښتل جائز دي. په تیره له هغو کسانو سره چي
خبري ورسره بندي وي، ترمنځ یې ستونزې او کدورت
راغلی وي، هغوی ته ورتلل، ورڅخه بخښنه غوښتل او
دهغوی زړونه خوشحالول خورا ضروري خبره ده. په دې
توګه که دچا حق پاته وي، په چا تیری شوی وي، پور ورڅخه
اخستل شوی وي او بیا ورکړل شوی نه وي. دحج تر سفر
وړاندي هغه حق ادا کول، یایي کوم انتظام کول یا ورڅخه
وخت اخستل او ځان ډاډمن کول ضروري ده. ترڅو له دې
مبارک سفر څخه پوره برکتونه ترلاسه شي. څومره چي په
پاک زړه، د بندګانو دحق په اداء کولو سره، له ممنوعاتو او
مکروهاتو په ځان ساتلو او دهلو آدابو په مراعات کولو سره
حرمینو شریفینو ته لاړ شي، هغومره به انشاء الله ورته ډیر
برکتونه حاصل شي.

دادحج په فضیلتونو کې ده چي تر هر څه وړاندې له
ګناهونو څخه توبه وکړي، دچا مال یې په تیري اخستی وي،



هغه ورته ورکړي ، په چا څه ډول تیری شوی وي، له هغه څخه
بخښنه وغواړي، کوم پوریي په ذمه پاته وي ، هغه اداء کړي
یا دورکولو یي کوم انتظام وکړي.

علماء لیکي : که په چا باندې ظلم درڅخه شوی وي یا دي
په ذمه باندې کوم حق وي ، هغه یو پور غوښتونکی دی ، هغه
درته وایي ته چیرته ځي؟ تا په داسي حال کې دکائناتو دپاچا
په دربار کې دحاضرېدلو اراده کړې ده چي، ته دهغه مجرم
یې. دهغه حکم دي ضایع کړی دی ، له حکم څخه دګرځېدلو
په حال کې هلته حاضرېږي. نه ، وویرېږه چي هغه به تا رد او
بیرته راشاته کړي. که ته دمقبولیت هیله لري ، له دې ظلم
څخه توبه وباسه او بیا حاضر شه. امر منوونکی شه او بیا
ورسه، کنه ستا دا سفر به له پیل څخه ستونزمن وي او دپای
په اعتبار به دمردود کیدلو وړ وي.

(فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۱۸۰)

همداسي دتللو په مهال، دخپلي سیمي له ملګرو، عزیزانو
او دوستانو سره لیدل کتل او ورسره خدای په اماني کول. له
هغوی څخه دځان په هکله ددعا غوښته ، دخیر سبب ګرځي

مسئله : دحج په سفر تر تللو وړاندې، خپل نیت دخدای
تعالی او دآخرت دثواب لپاره خالص کړئ.

مسئله: دچا که درباندې کوم مالي حق پاته وي او هغه مړ
شوی وي، هغه یې وارثانو ته ورکړئ. یایي له هغوی څخه

بخښنه وغواړئ. که د حق څښتنان ډیر وي، د هغوی ځا
ځایګی معلوم نه وي، نو هغومره شی چې په تا یې پاته و
د هغوی له لوري صدقه کړه. که مو په لاس یا ژبه ورته ض
رسولی وي، ډیري د مغفرت دعاوي ورته کوئ. انشاءا
د هغوی د حق د وبال څخه به خلاص شئ.

مسئله: که تر بلوغ وروسته قضا شوي لمنځونه، روژ
او زکات دومره وي چې د حج او عمرې تر سفر وړاندې ي
پوره کولای نشوای، یا د خلکو حقوق دومره ډیر وي چ
د هغو ټولو بخښنه غوښتل یا اداء کول، دا وخت کیدلا
نشي. نو دومره وکړئ چې د هغوی د اداکولو قصد له همد
شیبې څخه وکړئ. څومره چې یې ادا کولای شئ، هغه اد
کړئ او کوم چې پاته کیږي، د هغوی لپاره یو وصیت ولیک
خپل یو دوست یا خپلوان د ځان وصي کړئ چې که تاسو
ژوند اداء نه کړای شوای، وروسته به یې هغه اداء کړي.
(احکام حج، مفتي محمد شفیع، ص ۲۳، کتاب الفقه ج۱ ص ۹۴

## په حج کې د میرمنو بې احتیاطي

د بیت الله الحرام حج، د مسلمانانو لپاره د دې فریضې اد
کول د ډول، ډول برکتونو ذریعه او د عجیبو نعمتونو وس
ده. له دې سره، سره چې پخوانې ستونزې ختمې شوي دي
ډیري اسانتیاوې پیدا شوي دي، بیا هم اوږد سفر دی، ب
لکونو روپۍ لګیږي، ډیرو خلکو ته په ژوند کې یو ځل



برخه کیږي. اوس هم ډیر مشکلات په وړاندې پراته دي. په
دې صورت کې ډیره ضروري ده چې مسلمانان د دې فریضي
په اداء کولو کې، خورا احتیاط وکړي. د حج له مسائلو څخه
پوره معلومات تر لاسه کړي. (د همدې لپاره په هره ژبه کې
واړه او ستر کتابونه چاپ شوي دي.) ترڅو له شرعي
احکامو سره برابر سم حج اداء کړای شي. خو د افسوس خبره
داده چې د خدای تعالی د مخلوق همدا ګڼه، ګونه چې د نړۍ
له هر ګوټ څخه راځي، ډیری یې له فرائضو او واجباتو څخه
غافل دي. د دې نتیجه دا کیږي چې د ممنوعاتو ارتکاب
کیږي، بلکې له نورو ګناهونو څخه د ځان ساتلو اهتمام نه
کیږي. د لمونځونو په اداء کولو کې تقصیر او د جماعت په
پابندي کې بې پروایي کیږي. حال دا چې فرض لمونځ هم
تر حج په درجو زیات اهمیت لري. که له عذر څخه پرته یو
لمونځ هم قضاء شي، د حج د قبلیدلو توقع به مشکله وي. په
سفر کې په تیره تر احرام تړلو وروسته، د تلبیې تر ویلو او تر
ذکر کولو په عامه توګه غیبت ډیر کیږي، ښکنځل کیږي، نه
ژبه په واک کې وي، نه سترګې په اختیار کې وي او نه هم
لاس په واک کې وي. ډیر لیدل کیږي چې په مسجد حرام کې
د لمانځه په انتظار ناست وي، عبث خبري کیږي، په غیبت
اخته وي، حال دا چې ژوند داسې مرحلې ته رسیدلی وي چې
ټول وخت یې په عبادت کې وي، له ګناه څخه پاکیږي، بیرته

داسې کیږي لکه همدا نن چې له موره زیږیدلی او نړۍ ته
راغلي وي.

ځینې کسان په مستحباتو او ادابو کې زیاتوالی کوي
په فرائضو او واجباتو کې کوتاهي تري کیږي. خو اوشا د
حجاج داسې لیدل کیږي چې، سړي ته دا اشتباه پیدا کیږ
لکه سیل او تماشا ته چې ولاړ وي.

په میرمنو باندې حجاب فرض دی خو حرمینو شریفینو
په رسیدلو، ډیرې میرمنې بلکې ۹۹ په سلو کې با حجا
میرمن هم حجاب لري کړي او په دې توګه د کبیره ګنا
مرتکبې شي. نه یوازې بې حجابي بلکې کله خولا نیم
لوڅي، د بیت الله شریف طواف کوي. د افسوس خبره دا
چې نه یې میړه او نه هم محرم یې د بې حجابۍ د مخ نیو
تدبیر کوي. نه د حکومت له لوري وړ باندې کوم قید وي، ب
پروا د سړیو تر منځ هم هغسې ګرځي. د حجرالاسود
ښکلولو لپاره د خلکو په ګڼه ګوڼه کې د ننه له بیګانه خلک
سره په قبیح اختلاط کښې وي. دا هر څه حرام او کبیره ګناه د
د داسې حج چې له پیله تر پایه د محرماتو ارتکاب پکې کیږ
د قبول به یې څه هیله وي. د مبرور حج لپاره بدل جنت دی. خ
مبرور حج څه ډول دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسل
د مبرور حج په هکله بیان کړی دی چې حج کوئ او پکې هیڅ
د بې حیایي کار مکوئ، کوم ګناه مکوئ چې له ګناهونو



داسې پاک شي لکه له موره چې نن زیږیدلی یاست.

د پاکستان او هندوستان ځینې میرمنې د مصر، شام او
نورو هیوادونو میرمنې وینې چې هغوی بې حجابه وي،
دوی هم پرده لري کوي او په حرم کې داسې ګرځي لکه ټول
سړي چې یې محرم وي. یا لکه د کور په انګړ کې چې ګرځي.
خو دا ستره بې عقلي ده. که کوم قوم په یوه ګناه اخته وي نو
په دې سره خو هغه ګناه نه روا کیږي. نو ودې ګوري چې
د هغوی بې حجابي (د مخ لوڅول) په یوه تدبیر او وقار سره
وي. لباس یې هم له سره تر پښو د پردې وي، په پښو یې
موزې وي. خو د پاکستان د میرمنو په تیره د پنجاب او سند
د میرمنو لباس خو ډیر د بې حیایي لباس وي. ټول ښځینه
غړي یې ښکاره وي. بې پروا په وتلو سینو ګرځي. په نتیجه
کې یې همدا میرمن د همدې بې حیایۍ له امله، په فسق کې
اخته وي او میړونه یې هم د دوی د بې حجابۍ له امله په ګناه
لتاړ وي، ځکه هغه یې نه منع کوي، نه یې اصلاح کوي او
دا یوه بې حیایي او بې غیرتي ده.

تر ټولو زیات دا چې یوه عامه ابتلاء ده، هغه دا ده چې میرمن
پنځه وخته په لمانځه کې د سړیو په څیر، په حرم کې وي. که څه هم
د میرمنو لپاره دروازې بیلې دي، د لمانځه ځایونه بیل دي خو
د حج په زمانه کې چې ګڼه ګوڼه ډیره وي. بیل ځای ته رسیدلای
نشي، د سړیو تر منځ په صفونو کې دریږي او لمونځ کول پیل
کړي

## په مسجدحرام او نبوي مسجد کې لمونځ او میرمنې

لومړی خبره داده، لکه څرنګه چې په خپل هیواد کې د میرمنو لپاره په خپل کور کې لمونځ کول غوره دي، همداسې په مکه معظمه او مدینه منوره کې هم د میرمنو لپاره په خپلو کورونو کې پرته له جماعت څخه لمونځونه کول غوره دي. په حرمینو کې چې په لمونځ کولو څومره ثواب پیدا کیږي، هغوی ته په خپلو هستوګنځیو کې تر هغه زیات پیدا کیږي، کوم چې سړیو ته رسیږي. نو میرمنې دې په حرمینو کې هم لمونځونه په کورونو کې کوي.

که چیرې کوم وخت دبیت الله شریف دلیدلو، یا طواف لپاره، دمسجد حرام یا دصلوة او سلام ویلو لپاره نبوي مسجد ته راشي او هلته لمونځ په جماعت سره وکړي، صحیح دی. خو په دې شرط چې دسړیو په منځ کې په صف کې ونه دریږي. که کومه میرمن دسړیو ترمنځ په لمانځه ودریږي، د دودریو تنو لمونځونه خرابیږي، ښې او کیڼ لوری او هغه چې ورپسي ولاړ وي.

که له ارادې پرته کومه میرمن، دلمانځه په مهال په صفونو کې پاته شي او تري وتل ورته ستونزمن وي، یا د طواف په مهال لمونځ ودریږي نو بیا دې پټه خوله، له لمانځه پرته چې چیرې وي، هلته دې کښیني. دلمانځه نیت دې نکوي. که یې نیت وکړ دخلکو لمونځ هم خرابیږي. کله چې



امام فارغ شي، بیا دې یوازې لمونځ وکړي.

دطواف لپاره دې هم میرمنې داسې مهال ورشي چې دلمانځه وخت نه وي، هغه مهال ګڼه ګوڼه هم نسبتاً کمه وي. که دلمانځه وخت شي او اذان وشي، ژر، ژر دې طواف پوره کړي، یا دې طواف پرېږدي. څومره شوطونه چې پاته دي، تر لمانځه وروسته دې بشپړ کړي یا دې بیا طواف وکړي.

په هرحال، له ګناه څخه ځان ساتل خورا ضروري دي، ډیري غلطي کیږي، خو دلمانځه او بې حجابې مسئله زما په اټکل تر ټولو مهمه ده.

حج داسې یوه فریضه ده چې په ژوند کې یې بیا، بیا اداء کول مشکل دي، نو ضرور ده چې سړي او میرمنې یې په خورا احتیاط سره ادا کړي.

ځینې میرمنې په خپل هیواد کې هم حجاب نه مراعات کوي. ګواکې بې پردې اوسیږي، په دې کې شک نشته چې دا ستره ګناه ده او دیوې فریضې خلاف کار دی. خو هغوی ته هم لازمه ده چې دحج په سفر کې له دې ګناه څخه ځان وساتي، ترڅو دا فریضه خورا سمه اداء شي.

نن سبا ډیري میرمنې له محرم څخه پرته سفر کوي او دا کار هم حرام او ګناه ده. دکومې میرمنې چې محرم نه وي، حج وربانديې فرض نه دی. که یې محرم وُ خو دحج وس یې نه درلود، یا یې دې میرمنې دحج لګښت کولای نشوای، بیا هم

وربانديې حج فرض نه دی.

دافسوس ځای دادی چې حج هم وربانديې فرض نه وي، بیا هلته لاړه شي، په حج کې دومره څه هم پرېږدي . چې حج وربانديې فرض نه وي، بیا دا د حج سفر ولې کوي.

دبیت الله په حج کې، که حاجیان داسې غلطي کوي او دشریعت خلاف حرکات ورڅخه لیدل کیږي، نو له دې امله دحج برکتونه ختمیږي، دحجاجو له ډیروالي سره ،سره امت داسې ځای ته رسیږي چې ورځ په ورځ دتنزل لورته روان وي. که دومره ډیر حجاج په سمه طریقه سره حج وکړي او زموږ ټولو حج په سپیڅلي دربار کې په قبول سره مشرف شي، بنایې دنړۍ نقشه بدله شي. خدای جل جلاله دې مسلمانانو ته صحیح فکر کول او توفیق ورپه برخه کړي. آمین.

(محدث عصر حضرت علامه محمد یوسف بنوري نور الله مرقده.)

(له ندای شاهي دسمبر ۲۰۰۴ په مننه.)

## دمیرمنو لپاره په حج کې دمحرم شرط ولې شته ؟

مسئله :زه شرعي مسئله وایم دولې ځواب نه ورکوم ،خو تاسو ته په ډاډ سره لیکم چې،دمیرمنو لپاره ددریو ورځو یا زیات سفر له محرم پرته،رسول الله صلی الله علیه وسلم منع کړی ده . دلته په داسې اوږده سفر کې دهغې دعزت او عصمت ساتل یوه مستقله مسئله ده . زما په پوهه ځینې میرمنې پرته له محرم څخه سفر کوي ، په ناولتیا ککړیږي او



بیرته راځي. له دې سره ، سره په داسې اوږده سفر کې څه پیښې رامنځته کیږي ، میرمنې ته دناستې ولاړې ضرورت پیښیږي . که کوم محرم ورسره نه وي، مشکلات ورته مخته کیږي.(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۰)

خبرتیا :دخدای جل جلاله قانون یوازې په خپله رایه سمول ، یوازې یوه لوري ته یې نظر کول او له نورو خواوو څخه یې سترګې پټول، هوښیاري نه ده. (پرته له محرم څخه حج ته تلل) دافسوس خبره ده چې نن دا کار عام شوی دی.

(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۳)

## محرم چاته ویل کیږي؟

پوښتنه :سړی او میرمن یې حج ته ځي، له هغوی سره دمیرمنې خورزه ، وریره یاد میرمنې سکه خور ورسره تلای شي ، کنه؟

ځواب :محرم هغه دی چې کله هم ورسره نکاح کیدلای نشي ،دمیرمنې خور،خورزه ، وریره یې دمیړه لپاره نامحرم دي ، له هغه سره تلل یې جواز نلري.(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۷۹)

مسئله :دوالدینو فروع،یعني هغه سړی یا میرمن چې د مور یا پلار (مستقیم یا غیر مستقیم ) اولاد وي، لکه ورور، خور، وراره ،وریره، خوریي، خورزه یا دهغوی اولاد تر هر ځایه چې کښته وي ټول حرام دي.

(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۲۸۸- فتاوی عالمیگیري اردو ج ۲ ص ۵ وکتاب النکاح)

مسئله :دپلار مشر وررو ، کاکا او نور محرم دي .
(فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۱۷۳)

مسئله :له محرم څخه مقصد هغه شخص دی چي له هغه سره نکاح کول حرام وي ،که هغه دنسب له امله وي که د کوزدې یا شیدو له امله .دمحرم لپاره عقل او بلوغ هم شرط دي .
(کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۳٦ ،فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۱۷۳ ،معلم الحجاج ص ۸۴)

مسئله :دمیرمنې لپاره یې دوراره زوی محرم دی. ځکه دهغوی ترمنځ چې نکاح حرامه وي، هغه دهغه لپاره محرم دی. میرمن دخپل وراره له زوی سره حج ته تللای شي. خو ورسره دا احتیاط لازم دی چې هغه فاسق او فاجر نه وي ، په فاسق او فاجر ډاډ نه وي.فقهاوو ورسره سفر منع کړی دی.
(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۱۸۹ د شامي ج ۱ ص ۵۲۹ په حواله)

مسئله :له محرم سره هم هغه مهال سفر کول جایز دي چي دفتنې او شهوت ویره نه وي. که غالب ګمان داوې چي دسفر په مهال، که په یوازیتوب یاد ضرورت له امله په لاس وروړلو کې شهوت پیدا کیده ، ورسره سفر جواز نلري.
(معلم الحجاج –ص ۹۷)

مسئله :زوم (دسکنۍ لورمیړه ) دخپلې خواښې محرم دی، له هغې سره دتل لپاره نکاح کول حرام دي.نو له زوم سره میرمن حج ته تلای شي.(فتاوی رحیمیه ج۸ص۲۸۸ دطحطاوي ص۳۹۷ په حواله)

مسئله :دبنې زوم له ناسکه خواښې سره محرم نه دی، سفرورسره کولای نشي . ځکه دخواښې بن (ناسکه خواښې)



دزوم محرمه نه ده.(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۳۰۸)

مسئله :نن سبا دفتنې زمانه ده .دخسرګنې په تعلق کې احتیاط ته اړتیا ده . په تیره کله چې ځوانان وي ، په معلم الحجاج کې دي چي په دې زمانه کې دخسرګنۍ او دشیدو له تعلق سره چې محرم وي، په سفرکولو کې ورسره احتیاط ته اړتیا ده . داچې دفتنې زمانه ده، نوله داسې خلکو سره دي حج نه کوي. (فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۲۸۸ دشامي ج۱ ص ۵۲۹ په حواله ، معلم الحجاج ص ۹۵)

مسئله :میرمن له خپلې سکنې خورییې سره حج کولای شي، خو دمیره له خوریي سره یې کولای نشي.ځکه دمیرمن لپاره دمیره خوریي محرم نه دی.(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۳۰۷)

مسئله :له خنثی مشکل (هغه چې جنس یې معلوم نه وي چې نر دی او که ښځه ) سره هم محرم شرط دی. (معلم الحجاج ص ۵۵)

مسئله :په هوایې سفرکې چې څو ساعته دی،هم دمیرمنې لپاره محرم درلودل شرط دي. ځکه په (۴۸) میله کې دسفر احکام لکه په لمانځه کې قصر،جاري کیږي.
(فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۲۱۴)

## له اجنبي سره حج کول

مسئله :له اجنبي (دخور میړه ) سره سفر کول شرعاً صحیح نه دی.

مسئله :محرم هغه څوک دی چې له هغه سره هیڅ وخت

نکاح جواز نلري، خوښینه محرم نه ده ، ځکه که دحج په موده
کې سړی ،میرمنې ته طلاق ورکړي (عدت یې تیرشي) یا یې
میرمن مړه شي، نو له خوښینې سره نکاح کولای شي .له
نامحرم سره په بیولو حاجې ګنهګاریږي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۴)

## له ورور بللي سره حج کول

پوښتنه : یوهلک یې ورور وباله او ورسره حج یې وکړ.
ایا هغه یې محرم دی . آیا نکاح ورسره جائزه ده ؟
ځواب: کوم پردی شخص په ورور بللو سره نه محرم
کیږي.نو نکاح ورسره صحیح ده.میرمنې ته له محرم ځخه
پرته سفرکول ګناه ده.حج خو کیږي خو میرمن ګناه کاره ده. په
خوله څوک ورور بلل محرم نه دی او هغه محرم ښودل غلط
ویل دي.(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۷۹۸)

## دمیړه له سکني کاکا یا نورو سره حج کول

مسئله: که کومې میرمنې، دمیړه له کاکا سره نور قرابت
نه درلود، دا دواړه په خپل منځ کې نامحرم دي او دمیړه له
حقیقي کاکا سره دهغې حج ته تګ جائز نه دی.
مسئله :دمیرمنې دمیړه مشرورور، نامحرم دی، له
نامحرم سره په سفر تلل جواز نلري.
مسئله :دمیرمنې دمیړه کشرورور محرم نه دی، له محرم
پرته حج یا عمرې ته تلل جواز نلري .
مسئله :میرمن دتې خوړلو له ورور سره حج ته تللای شي



ځکه هغه محرم دی.(فتاوی محمودیه ج۳ ص۱۸۹)
مسئله :میرمن ته دلور له خسر سره حج ته تلل جواز نلري
ځکه نامحرم دی.
مسئله :مامې (دماما ښځه) شرعاً محرمه نه ده ، نو هغه
دمیړه له سکني خوریي سره حج ته تلای نشي.
مسئله :میرمن له بلي داسې میرمنې سره چې له خپل میړه
سره وي یا له داسي میرمني سره حج ته تلل جائز نه دي چې له
هغې سره خپل محرم وي.(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۶)
مسئله :دمیرمنې دحج سفر له زاړه غیر محرم شخص سره
جواز نلري. (فتاوی دارالعلوم ج ٦ ص ۵۴۰ دبحر الرائق ج ۸ ص ۳۸ په حواله)
مسئله :دمیرمنې لپاره دیور یا جیت (دمیړه مشر او کشر
ورور) محرم نه دی.(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۳۰۷)

## سفر له محرم ځخه پرته، خو حج له محرم سره

پوښتنه :که کومه میرمن حج ته بې محرمه لاړه شي خو په
هیواد او جده کې په هوائي ډګر یي ورور موجود ؤ نو دداسې
میرمنې لپاره حکم څه دی؟
ځواب :له هیواد ځخه تر جدې پوري په الوتکه کې یوازې
سفر کولو ګناه ورباندې شته ،حج او عمره یې کیږي خو په
الوتکه کې یې یوازې سفر کول جواز نلري.(آپ کې مسائل ج۴ ص۸۰)

********

## دحج کولو لپاره غیر محرم ، محرم کول

پوښتنه : کومې میرمنې چې غیر محرم،محرم وګڼي
دحج په سفر لاړه شي، حکم يې څه دی؟

ځواب : له محرم پرته دحج سفرجايز نه دی ، نامحرم
محرم بلل او دحج سفر ورسره کول، دوي ګناوي دي . خوک
لاړه شي حج کيږي.ديوازې سفرکولو ګناه وربانديې شته .
(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۲

مسئله :میرمن چې هرڅومره زَرَه وي،له محرم پرته يې
حج سفرحرام دی .که نوري ميرمنې له خپلو مخارمو سره
ورسره وي هم جواز نلري. که دمړينې ترمهاله يې محرم ون
موند نود (حج بدل) وصيت وربانديې فرض دی.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۵۲۳

## له محرم څخه پرته دزړې ميرمنې حج کول

مسئله :ميرمنې ته له محرم څخه پرته دحج سفر جواز نلري
اګرکه حج يې کيږي، خو ددې يوازې سفرکولو ګناه بيله وربان
پاته کيږي. خو داچې دزړې ميرمنې سفر ډير د فتنې سبب
ګرځي،له دې امله ممکن الله تعالی وربانديې مهرباني وکړي ،
ددې سفردي، الله تعالی ته استغفار وايي . پاته داخبره ده چې
زرګونو ميرمنې محرم نلري آيا هغوی به حج نکوي؟

ددې ځواب دادی چې،ترڅو ورته محرم ونه موندل شي
ميرمن بانديې حج فرض نه دی.نوحج دې نه کوي،که دحج
شوق لري او محرم نه موندل کيږي،دو همه نکاح دې وکړي.
(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۷۴ – فتاوی رحيميه ج ۸ ص ۳۰۷ ،کفايت المفتي ج ۴ ص



## خپل ملازم محرم کول

پوښتنه : زه دخپلو مصروفیاتو له امله، حج ته تلای نشم.
آیا زه خپل نوکر، دمحرم په توګه له خپلې میرمنې سره حج ته
استولای شم؟

ځواب :محرم داسې چاته ويل کيږي چې، دهغه دتعلق له
امله ورسره نکاح کيدلای نشي. لکه دميرمنې پلار ،ورور
،وراره ،خوريي. دکور نوکر محرم نه دی او له محرم څخه
پرته حج ته تلل جايز نه دي. تاسو په خپله هم ګناه کار کيږي،
ستاسو ميرمن او ملازم هم .(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۶)

## ځان دبل ميرمن ښودل او حج کول

پوښتنه :زما نوم محمد اکرم دی ، زما ديوه دوست نوم
محمد اشرف دی . اوس زما دوست له خپل کفيل سره جنګ
کړی دی، هغه خپله ميرمن حج ته غوښتې ده ،هغه زما په نوم
خپله ميرمن حج ته راغوښتې ده .يعني دهغې په نکاح نامې
کې يې زما نوم ليکلی دی.په کاغذي معاملوکې يې هغه زما
ميرمن ښودلې ده.دلته راغله ، زه يې دراوستلو لپاره هوائې
ډګرته ورغلم .دامنيت مسؤلينو زما اقامه وکتله هغه يې زما
دميرمنې په صفت رابهرکړه ،ميرمن اوس له اصل خاوند سره
ده ،حج يې هم له هغه سره وکړآيا دا حج صحيح دی؟

ځواب : ددې محترمې حج خو اداء شو، خو دجعل کاري په ګناه کې
درې واړه شريک ياست. هغه سړی او ميرمن هم او تاسو هم .(آپ کې
مسائل ج ۴ ص ۸۴)

### کونډه او عدت لرونکې مېرمن څرنګه حج وکړي؟

مسئله: که د کومې مېرمنې مېړه داسې مهال وفات شي چې د حج تر وخته عدت نه پوره کېده، نو دا مېرمن دې د عدت تر پوره کولو د حج په سفر نه ځي.(آپ کې مسائل ج ۲ ص ۳۳ فتاوی دارالعلوم ج ۶ ص ۵۳۵ د ردالمحتار ج ۲ ص ۱۹۸ په حواله فتاوی رحیمیه ج ۵ ص ۲۳۷)

مسئله: که کومه مېرمن د عدت په موده کې حج وکړي، حج يي کېږي خو ګنه کاره ده. (معلم الحجاج ص ۸۶)

مسئله: د عدت په موده کې حج ته د مېرمنې تلل ناجائز دي، د عدت تر تېرېدلو وروسته، که له محرم سره ځي تلای شي، که يي محرم ونه موند د حج بدل وصيت دي وکړي. (فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۳۰۷)

### د حاملې مېرمنې حج

پوښتنه: ايا حامله مېرمن حج کولای شي؟ که يې کولای شي نو هغه ماشوم چې يې په ګېډه کې دی، د هغه هم حج کېږي؟

ځواب: حامله مېرمن هم حج کولای شي، په ګېډه کې د ماشوم حج نه کېږي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۳۴)

### که مېرمن له متبنې سره حج ته لاړه شي

مسئله: حج ته د مېرمنې تلل له داسې چا سره چې زوی يې بللی دی، جايز نه دي. له ګاونډيو مېرمنو سره يي هم تلل ناجايز دي. که يي محرم ونه موند حج بدل دې وکړي، خو حج بدل به داسې وخت کوي چې دا شرط پوره وي چې ټول عمر



يې محرم نه موندل کېږي. خو که کوم وخت محرم پيدا سو مثلاً، نکاح يې وکړه او مېړه يې هم حج ته په تللو راضي شو او دا مهال هم د مېرمنې او د محرم د حج مصرف ورسره وي، بيا به حج کوي. (امدادالاحکام ج ۲ ص ۱۵۷)

مسئله: که کومه مېرمن له وړکتوب څخه يو ماشوم وروزي او زوی يي وګڼي، ماشوم هغه مور او دا هغه زوی وبولي، د حج په سفر کې همدا هلک د دې مېرمنې لپاره محرم نه دی. له هغه سره حج يا عمرې ته تلل يې جواز نلري. ځکه متبنې (زوی بلل شوی) حقيقي زوی نه دی. د قرآن کريم د احزاب په سورة کې يې تفصيل موجود دی. (آپ کې مسائل ج ۸ ص ۳۱۸)

### د حج په سفر يوازې د مېرمنو د کاروان حکم

مسئله: په فطري او قدرتي ډول، د سړي ښځې او د ښځې سړي ته رغبت وي او شيطان هم په ګناه کې دا خته کولو هڅه کوي. په مشکوة شريف ص ۲۶۷ کې حديث شريف راځي:

{د سړيو په هکله تر ښځو ډېر ضرر رسونکې بله فتنه نشته.}

د دين په ضرورياتو کې يو هم حج دی. په دې کې شرعي ضوابط او له فساد څخه د خونديتوب ډېر احتياطي تدبيرونه ښودل شوي دي چې دا دي: په سفر کې به مېرمن له محرم يا مېړه سره وي چې، د هغې بشپړ حفاظت وکړل سي، کنه د حج د سفر هم ورته اجازه نشته. که له محرم څخه پرته لاړه شي، نو د شرعي حکم د خلاف ورزي له امله ګناه کاره کېږي. خو مره

چې دمیرمنې عصمت او ناموس ساتنه میړه او محرم کولای شي، هغومره یې نوري میرمنې کولای نشي. بلکې په خپله هغه میرمنې هم دحفاظت لپاره نورو ته اړتیا لري. دمیرمنې لپاره دمحرم شرط له حج څخه دهغې دبې برخې کولو لپاره ن دی، بلکې ددې لپاره دی چې دهغې عصمت او ناموس خوندي وي، له بدګمانې او تور څخه ژغورلې وي، ځکه ل دې څخه پرته میرمن کوم ارزښت نلري. نو میرمنو ته ضروري ده چې دشرعي احکامو درناوی وکړي، شریعت خپل محسن وګڼې.

چیرې چې دحج معامله ده، که ورته محرم ونه موندل شي نو شریعت ورته دحج بدل اجازه ورکړې ده چې په هغه سره دا دپوره ثواب مستحقه هم ګرځي او دشرعي حکم دتابعدارې له امله یې ستر اجر په برخه کیږي. (فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۳۲۱، دبخاري ج ۱ ص ۴۴۱ په حواله، ابن ماجه ج ۱ ص ۲۹۷ – هدایه ج ۱ ص ۱۱۳)

## دحجاجو درخصتولو لپاره دمیرمنو ورتګ

مسئله: ځیني ځایونه داسې رواج وي چې کله حجاج حج ته ځي نو ترتم ځای پورې دهغه درخصتولو لپاره میرمنې هم ځي، هلته دنرو او ښځو اختلاط راځي، بې حجابي وي. دا رواج بد او دډیرو بدیو ټولګه ده. نو دپرېښودلو وړ ده. خلکو دحج په نوم دښځو ټولنه او اختلاط او نور ډیر بد او مکروه رسمونه رامنځته کړي دي چې، دثواب په ځای ورته دلعنت سبب ګرځي. له دې امله دا رواج باید بالکل بند کړل شي.

(فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ۴۰۴ فتاوی محمودیه ج ۳ ص ۲۰۲)



## دمیرمنې نرۍ ټکرې په سر کول او حرم ته تلل

مسئله: دمیرمنې لپاره په داسې لباس کې بهر وتل حرام دي چې بدن یې ترې ښکاره او یا یې دسر ویښتان ور څخه ولیدل شي.

مسئله: په داسې نرۍ ټکرې کې لمونځ هم نه کیږي چې ویښتان یې ترې ښکاره کیږي.

مسئله: مکې مکرمې او مدنې منورې ته چې میرمنې لاړې شي په مسجد کې په جماعت سره لمونځونه کوي او په نبوې مسجد کې دڅلویښتو لمنځونو پوره کول ضروري ګڼي. خو دا مسئله په یاد ولرئ چې په حرمینو کې دجماعت دلمانځه ثواب یوازې دسړیو لپاره دی. میرمنو ته هلته هم په خپل هستوګنځای کې لمونځ کول غوره دي.

لږ غور وکړئ، کله چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په خپله لمونځ ورکاوو، هغه مهال یې هم وویل: [دمیرمنو په کور کې لمونځ کول په مسجد کې دجماعت تر لمانځه ورته غوره دی.}

په هغه لمانځه کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم امام او صحابه کرام مقتدیان وي، په داسې لمانځه کې تر جماعت هم میرمنو ته په کور کې لمونځ کول غوره او افضل دی. نو نن به دجماعت لمونځ میرمنو ته څرنګه افضل وي؟

لنډه دا چې میرمنې مکې او مدینې ته لاړې شي، هغوی ته په خپلو هستوګنځایونو کې لمونځ کول مناسب دي.

همدلته لمونځ په حرمینو کې ترلمونځ کولو غوره دی. حرم
شریف ته دطواف لپاره راځي ،خو دخلکو دازدحام په مهال
کې دې دورننوتلو او دحجرالاسود دښکلولو هڅه نکوي، کنه
ګناه کاره کیږي . نیکې برباد ګناه لازم خبره به ورباندې
رېښتونې شي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۱۹)

## دحج په مبارک سفر کې دمیرمنو لپاره پرده

پوښتنه : دحج په موقع ، که میرمنو ته وویل شي چې پرده
وکړي .په ځواب کې وایي چې، په دې مبارک سفر کې پردې
ته څه اړتیا نشته او مجبوري هم ده ، نو دپردې حکم څه دی ؟
ځواب : داحرام په مهال، میرمنو ته ویل کیږي چې په پرده
دې مخ ونه پوښي. خو ترکومه حده چې ورته شوني وي له
نامحرم څخه دې پرده کوي اوکله چې احرام نه وي، نو دمخ
پټول ضروري دي.داغلطه خبره ده چې په مکه مکرمه یاد حج
په سفرکې پرده ضرورنه ده.(آپ کې مسائل ج۴ ص ۲۲۵،کتاب الفقه ج۱ص۱۵۴)

## ایا نجلۍ تر واده وړاندې حج کولای شي ؟

پوښتنه : دیوې نجلۍ نکاح شوې ده.خو واده شوی نه ده.
دواړه لوري غواړي په دوو کلونو کې واده وشي .هلک
غواړي په سعودي کې دهستوګنې په مهال تر واده وړاندې
په همدې نجلۍ حج وکړي . ایا تر واده وړاندې له هلک سره
دنجلۍ حج ته تلل صحیح دي ؟
ځواب : دحج په کولو یې دواړه کارونه کیږي، واده هم او



حج هم .کله چې نکاح وشي،نو هغه دواړه سره میړه او ښځه
دي.که واده شوی وي او که شوی نه وي.(آپ کې مسائل ج ۴ ص۱۵۶)
مسئله :که دحج لپاره تیاري کول بشپړ شوي وي او د
نجلۍ کوژده وشي، نو نجلۍ له مور،پلار(یابل محرم) سره
حج ته تلای شي. (آپ کې مسائل ج ۴ص ۳۳)

## پر میرمن دحج فرضیت

پوښتنه :آیاحج په سړیوفرض دی که په میرمنو هم دی؟
ځواب : په میرمن هم فرض دی خو چې محرم ولري. که
محرم ونه موندل شي ، تر مړینې وړاندې دې دحج بدل
وصیت وکړي.(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۳۳)
مسئله :دفرض حج لپاره میرمنې ته له میړه څخه (چې
کوم محرم ورسره ځي) او لور ته له پلار څخه داجازې اخستلو
ضرورت نشته. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۳٦ فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص۵۲۸ دردالمحتار ج ۱ ص
۲۰۰ په حواله کتاب الفقه ج ۱ ص ۲۱)
مسئله : په میرمن هغه مهال حج فرض کیږي چې دومره
شتمنې ولري چې ددې او دمحرم دتللو لګښت پوره کړي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۱ ص ۵۲۲ دعالمګیري ج ۱ ص ۲۰۳ په حواله)
مسئله :کومې میرمنې ته که میړه یا زوی پیسې ورکړې
هغه یې مالکه ده . که هغه روپۍ دحج لپاره بس وي او
دمحرم خرڅ یې هم پوره کولای شوای نو په دې میرمن باندې
حج فرض دی . له خپل محرم سره دې حج ته لاړه شي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۵۲۱ دهدایة کتاب الحج ج ۱ ص ۲۱۵ په حواله)

## که له میرمنې سره یې دمحرم مصرف نه ؤ

مسئله :که له میرمنې سره د حج دضرورت په اندازه څه و، خود محرم دا نه ؤ او یا ؤ، خو مصرف یې په غاړه نه اخیست او له میرمنې سره دومره مال دولت نه و چې دځان او محرم دواړو لګښت پوره کړي ،نو په دې میرمن لازم دی ترڅو له خپل لوري حج بدل وکړي یا وصیت وکړي چې زما تر مړینې وروسته زما په دولت حج بدل وکړئ.

(احکام حج ص ۱۸۸– امداد الفتاوی ج ۲ ص ۱۵۶)

## میرمنو ته ځانګړې لارښوونې

په لاندې یادو شویو مسائلو کې دمیرمنو حکم له سړیو څخه بالکل بیل دی :

۱– دمیرمنو احرام دومره دی چې خپل سر پټ کړي او مخ یې لوڅ وي.

۲– ګنډلي جامې دمیرمنو لپاره منع نه دي.

۳– میرمنې به تلبیه په ټیټ اواز وایي.

۴– دناپاکۍ یعني حیض او نفاس په حالت کې به دعا او تلبیه وایې، احرام به تړي خو لمونځ به نکوي.

۵– دسر ویښتان دې په یوه ټوټه جامه وتړي تر څو کوم ویښته غوڅ او نه لوېږي. داجامه (دسمال) یوازې داحتیاط لپاره وي (ځیني خلک یې دمیرمنې احرام ګڼي، خو دا سمه نه ده.)



۶– دصفا او مروه ترمنځ د رنګه لایټونو (ګروپونو) ترمنځ ځغاسته دمیرمنو لپاره سنت نه ده.

۷– داحرام د خلاصولو په مهال، دویښتانو سرونه دګوتې دویوه بند په اندازه غوڅول کافي دي.

۸– دناپاکۍ په حالت کې له طواف څخه پرته، دحج هر رکن اداء کولای شي.

۹– دنحر (لسم ،یوولسم او دوولسم تاریخ) په ورځو کې که پاکې نه وي، دزیارت طواف تر پاکیدلو پورې ځنډول کومه جریمه او سزا نلري.

۱۰– جدې یا مکې معظمې ته په رسیدلو، که یې میړه یا محرم مړ شي یا طلاقه شي، په داسې حالت کې دحج ارکان اداء کولای شي.

۱۱– که میرمنې ته دبیرته تګ په مهال ناپاکي (حیض یانفاس) پیښ شي، نو دوداع طواف ورته معاف دی.

۱۲– اضطباع یعني ښادرتر ښي اوږې لاندې کول او په کینه اوږه اچول دمیرمنو لپاره نشته.

۱۳– میرمنې دې دومره لاس نه لوړوي چې بغل یې ښکاره شي.

۱۴– رمل (پهلواني) یعني دطواف د پیل په دري ځل ګرځیدلو کې قدمونه نژدې ښودل او ګړندي تلل دمیرمنو لپاره سنت نه دي، هغوی دې په خپل حال ځي. (محمدرفعت قاسمي)

## دميرمنو احرام

مسئله : دميرمنو احرام او حج هم دسړو په شير دی ،توپير يي دادی چې ميرمنې ګنډلي جامي اغوستلای شي، سر پټولای شي خو مخ به يې لوڅ وي.

مسئله :دميرمنو لپاره دموزو په پښو کول او دستکلي په لاس کول جايز دي ،نه پښو کول يي غوره دي او ګينه هم استعمالولای شي.(معلم الحجاج ص ۱۱۰)

مسئله : ميرمنې د حيض او نفاس په حال کې هم احرام تړلای شي خو د احرام دوه رکعته نفل کولای نشي.
(احکام حج ص ۳۴ مفتي شفيع صاحب)

مسئله :داچې د حيض او نفاس په وخت کې ميرمنو ته لمونځ کول جواز نلري ، نو غسل او اودس دي کوي، مخ په قبله دي کښيني نيت دي کوي او تلبيه دي وايي، لمونځ دي نکوي .(معلم الحجاج ص ۱۰۶)

مسئله : ميرمنو ته سرپټول واجب دي او په مخ جامه اچول منع دي، په سر به جامه داسې اچوی چې مخ يي پټ نشي او ګنډل شوي جامي اغوستل جواز لري.

مسئله :ميرمنې ته مناسب ده تر څو يو دستمال په سر وتړي چې سر لوڅ نشي. دادستمال د ستر د وجوب لپاره دی يعنې د سر د پټولو لپاره ، د احرام لپاره نه دی. ځکه د ميرمنې دادستمال د احرام جزنه دی، نو که سرلوڅ شي جنايت نه دی



دم يا بل څه نه اوړي . دپردي شخص په وړاندي دادستمال لرل واجب دي او سر لوڅول ګناه ده.

مسئله : دميرمنې لپاره دستمال په احرام کې داخل نه دی. که يې دغسل يا په اوداسه کې دمسح لپاره خلاص کړي ، نو دجنايت څه نه لازميږي ، داددې لپاره هم دی چې ويښتان يې له توئيدلو وساتي .

مسئله :ميرمنې ته د حيض او نفاس په حال کې د حج ټول افعال جايز دی. يوازې طواف او لمونځ کول منع دي. که تر احرام وړاندې حيض راشي غسل دي وکړي ،احرام دې وتړي ټول نور افعال دې وکړي خو سعی،طواف او لمونځ دې نه کوي.

مسئله :دميرمنې لپاره تلبيه په زوره ويل منع دي. په دومره غږ دې وايئ چې په خپله يې واوري. (معلم الحجاج ص ۱۱۵)

مسئله :دخنثی مشکل يعنې هغه چاچې نه معلوميږي چې نر دی که ښځه ،ټول احکام يې د ميرمنې په شير دي. دهغه له پردي سړي يا ميرمنې سره يوازې او سيدل جايز نه دي. (معلم الحجاج ص ۲۲۹)

مسئله :ميرمن که د احرام په حالت کې په ورغوي نکريځي ووهي، دم ورباندې واجبيږي . (معلم الحجاج ص ۲۲۹)

مسئله : که يې د احرام په حالت کې دودی پخوله او کوم ويښته يې وسوزي ، صدقه دې ورکړي. که دبيماری له امله

ولويږي يا په خوب کې وسوزي څه شې نه وربانديې واجبيږي. (معلم الحجاج ص ۲۳۹)

مسئله: ميرمنو ته داحرام تړلو لپاره کوم خاص ډول جامې اغوستل لازم نه دي، له همدې امله دي ميرمنې ګنډل شوي جامې اغوندي، که هر رنګ وي، دهغې احرام دادی چې مخ لوڅ پريږدي او په لاسونو باندې دستکلي نه کول غوره دي. خو که غير محرم سړي وي، مخ په څه شي سره پټولای هم شي او په کومه جامه لاسونه هم پټولای شي. (آپ کې مسائل ص ۸۹)

مسئله: دميرمنې لپاره داغوره دي چې داحرام په حالت کې موزې په پښو کړي. ځکه په هغوی کې پرده ډيره ده، خو که يې جامې اوږدې او ټول بدن يې پټ کړی ؤ نو همداسې جامې کافي دي.

مسئله: که ميرمنې داحرام په وخت کې موزې په پښو کړي وروسته يې لرې کړي، پروا نلري. دا داسې ده لکه سړی چې داحرام په مهال څپلکې په پښو کړي او بيرته يې لرې کړي او څه ستونزه نلري. (حج بيت الله کې اهم فتاوی ص ۲۴)

مسئله: داحرام لپاره غسل کول مؤکد سنت دی. که يوازې اودس وکړي، دغسل ځای نيسي. خو غسل کول غوره دي، داغسل دنظافت او پاکې لپاره دی. خو معذور د غسل ځای نه نيسي. نو د حيض او نفاس په حال کې دې هم غسل کوي.



مسئله: که اوبه نه وي، غسل ساقطيږي. خو په بدل کې يې تيمم مشروع شوي نه دی. ځکه هغه پاکې چې په دې غسل کې مقصد ده، په تيمم نه ترلاسه کيږي. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۴۸)

مسئله: داحرام په حالت کې نکاح کول جايز دي، ځکه داحرام تړل دميرمنې دنکاح مخ نيوی نه کوي. خو نژدې والی منع دی. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۵۳)

مسئله: داحرام په حالت کې دنژديوالي په څير، هغه حرکات همه حرام دي چې همدا خواهش او غوښتنه زياتوي، لکه ښکلول، بدن له بدن سره مښل. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۵۳)

**ايا ميرمنې په احرام کې مخ لوڅ پريږدي ؟**

مسئله: دا سمه ده چې داحرام په حالت کې دمخ پټول جواز نلري. خو ددې معنی دا نده چې ميرمن داحرام په حال کې پرده پريږدي. بلکې تر کومه حده چې شونې وي پرده ضروري ده. يا په سر کومه ټوپۍ کښيږدي يا وربانديې څادر داسې واچوي چې مخ پټ نکړي يا ميرمن په خپل لاس کې دلاس پکه يا بل څه ولري. دخلکو په وړاندې يې مخته ونيسي. په دې کې شک نشته چې دحج په اوږده او بااز دحامه سفر کې، دميرمنې لپاره دپردې قيد مشکل دی خو تر هغه چې کيدلای شي دپردې اهتمام ضروري دی، هغه چې تروس وتلی وي الله تعالی دې معاف کړي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۸)

مسئله: که داحرام په حالت کې دميرمنې په مخ دبرقع

پرده وه یا څادر و، که تر یوه ساعت کم وخت و نو نیمه صاع صدقه ورباندې واجب ده او که یې څو ځله داسې پرده اچوله بیا به یوه صاع صدقه ورکوي.(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۵۳۵)

## په احرام سربیره مسح کول

پوښتنه: نن سبا لیدل کیږي چې میرمنې احرام تړي نو ویښتان بالکل پټ وي، له سر څخه پړوني لرې کول مشکل وي. ایا د سر مسح په جامه سربیره صحیح ده؟

ځواب: د میرمنو چې د سر د پاسه کومه جامه یا دسمال وي د هغه له احرام سره هیڅ تعلق نشته. دا دسمال یوازې د دې لپاره وي چې ویښتان غوخ او تیت نشي.

میرمنو ته په دې دسمال باندې مسح کول جواز نلري، دسمال به لرې کوي او مسح به کوي. که په دسمال باندې مسح وکړي او په سر مسح ونکړي نو اودس یې نه کیږي، نه یې لمونځ کیږي، نه طواف او نه حج نه عمره. ځکه دا کارونه له اودس پرته جواز نلري. په سر باندې مسح کول فرض دي او له مسح پرته اودس نه کیږي.(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۹۰)

مسئله: میرمنې په سر باندې دسمال تړل ضروري ګڼي او هغه احرام بولي. دا ناپوهي ده. له غیر محرم څخه د سر او مخ پټول فرض دي او د ویښتانو د حفاظت لپاره په سر دسمال تړل هم جائز دي.(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۵۶۶)



## د میرمنو لپاره د حج ضروري مسائل

پوښتنه: زما د حج کولو اراده ده، خو ډیره خوابدې یم ځکه که مې میاشتنۍ بیماري د حج په شپو کې پیل شي، څه به کوم او په نبوي مسجد کې د ځلوېښتو لمونځونو حکم څه دی؟

ځواب: ستاسو پریشاني له دې امله ده چې مسئله درته معلومه نه ده. د حج په کارونو کې، د بیت الله شریف له طواف څخه پرته، نور داسې څه نشته چې د میرمنو بیماري ورته خنډ شي. که تر احرام وړاندې همدا میاشتنۍ بیماري پیل شي، میرمن دې غسل یا اودس وکړي او احرام دې وتړي. تر احرام تړلو وروسته چې دوه رکعته نفل کیږي، هغه دې نکوي. د حاجي لپاره مکې ته په رسیدلو باندې لومړنی طواف چې قدوم ورته ویل کیږي سنت دی. که د میرمنو میاشتنۍ بیماري وه هغه دې نکوي، که منیٰ ته تر تګ وړاندې پاکه شوه و دې کړي او کنه د طواف ضرورت یې نشته او نه ورباندې کفاره اوړي.

دوهم طواف په لسم تاریخ کیږي، هغه ته د زیارت طواف ویل کیږي. دا د حج فرض دی. که میرمن دا مهال میاشتنۍ بیماري درلوده، دا طواف دې وځنډوي، تر پاکې راتلو وروسته دې طواف وکړي.

دریم طواف له مکې مکرمې څخه د وتلو په مهال کیږي، دا واجب دی. خو که میرمن دا مهال هم بیماري درلوده،

هغه دې پرېږدي ورڅخه ساقطېږي ، نور کوم مناسک چې
په منی ، عرفات او مزدله کې سرته رسېږي، په هغوی کې
دمیرمنې پاکې شرط نه ده.

که میرمنې دعمرې لپاره احرام وتاړه ، تر پاکیدلو پورې
دي دعمرې طواف او سعی نکوي. که له دې امله دعمرې
وخت پیدا نشو او دحج لپاره منی ته دتللو وخت راغی نو
دعمرې احرام دې خلاص کړي او دحج لپاره دې احرام وتړي
نفل دې نکوي او دس دې وکړي او داحرام نیت دې
وکړي، دعمرې چې یې دا احرام خلاص کړ، وروسته دې ددې
په ځای عمره وکړي.

په نبوي مسجد کې دسړیو لپاره ثلو ښنت لمونځونه کول
مستحب دي، خو دمیرمنو لپاره نه دي. دمیرمنو لپاره په
مکه مکرمه او مدینه منوره کې هم تر مسجد په کور
(هستوګن ځای) کې لمونځ کول افضل (غوره) دي .
(آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۱۸–فتاوی دارالعلوم ج ۶ ص ۴۶)

مسئله: که میرمنې ته داحرام په حال کې حیض یا نفاس
پیښ شي. انتظار دې وباسي او تر پاکې وروسته دې طواف
او سعی وکړي، وښتان دې کم کړي عمره دې پوره کړي . ک
تر عمرې وروسته ورته همدا بیماري پیښه شوه ، یا دذ
الحجې په اتمه تر احرام وروسته حیض یا نفاس پیښ شو
حج ټول افعال دې په ځای کړي، دعرفې وقوف ،دمزدلفې
وقوف ، دجمرو (شیطانانو) ویشتل ، تلبیه او نور الهي



اذکار دې وکړي.

که دحج تر طواف او سعی وروسته دا بیماري پیښه شوه ،
نو دوداع طواف تري ساقطېږي. ځکه په حایضې او نفاسې
میرمنې دوداع طواف نشته .(حج بیت الله کې اهم فتاوی ص ۵۲)

مسئله : که میرمن دحیض یا نفاس په حالت کې وه، دحج
ټول اعمال دې ترسره کړي ، یوازې دبیت الله شریف طواف او
دصفا او مروه سعی دې نکوي، طواف دې ځکه نکوي چې
هغه ته پاکې شرط ده او سعی دې ځکه نکوي چې سعی له
طواف پرته نه کیږي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۸۹)

مسئله : میرمنو ته په داسې حال کې دحجرالاسود ښکلول
بالکل حرام دي چې له سړیو سره دلګیدلو احتمال وي.
(احسن الفتاوی ج ۴ ص ۸۹)

مسئله :درسول الله (صلی الله علیه وسلم) له مبارکې روضې
سره که تېل ما تېل ؤ، په تیره دخلکو په منځ کې دمیرمنو
داخلیدل حرام دي. په داسې حالت کې دي له لرې څخه درود
او سلام وایې. (احسن الفتاوی ج ۴ ص ۵۶۸)

**په عرفات کې که حائضه میرمن ، ایت کریم یا بل څه لولي؟**

مسئله : میرمن دحیض یا نفاس په حالت کې، دقرآن کریم
کوم ایت دتلاوت په نیت ویلای نشي. خو دقرآن مجید هغه
ایت یا سورت چې په هغه کې دعا یا دالله تعالی حمد او ثنا
وي، ددعا او ذکر په نیت که یې وایې ، ویلای یې شي.

مسئله :که میرمن د حیض او نفاس په حالت کې وي یا په چا (نارینه یا ښځینه) غسل واجب وي، دهغه مسجد ته تلل، دبیت الله شریف طواف کول ، دقرآن کریم تلاوت کول یا ښکلول صحیح نه دي.

مسئله :که دالحمد لله ټول سورت ددعا په نیت وایې یا نورې دعاوې چې په قرآن کریم کې وي، ددعا په نیت ولولي دتلاوت اراده یې نه وي، صحیح دي. په دې کې کومه ګناه نشته. لکه دا دعا :ربنااتنا في الدنيا حسنة وفي الاخرة حسنة وقناعذاب النار.یا دا دعا : رَبَّنَا لاَ تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا. تر پایه ،چې دبقرې دسورت په پای کې ده ، یا کومه بله دعا چې په قرآن کریم کې راغلي وي، ددعا په نیت یې ویل صحیح دي. نو په دې صورت کې میرمن د حیض او نفاس په حالت کې ددعا په نیت دا اخلاص سورت (قل هو الله احد) دذکر په نیت په عرفات کې ویلای شي. دتلاوت په نیت دې نه وایې.(فتاوی رحیمیه ج ۹ ص ۱۱۸)

(دا آیت ،لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظلمین.) هم دذکر په نیت ویلای شي خو دقرانې دعاوو حروفو ته دې لاس نه وروړي، په ژبه دې دذکر په توګه وایې.(محمد رفعت قاسمي)

مسئله :دعرفات دوقوف لپاره هم پاکوالی شرط نه دی. که کومه میرمن دحیض یا نفاس له امله دناپاکې په حالت کې وه ، په همداسې حالت کې هم دعرفات په میدان دریدل صحیح دي.

(احکام حج ص ۶۵ ـ معلم الحجاج ص ۱۶۳)



### که دطواف په دوران کې بالغ شي

پوښتنه :یوې نجلۍ له خپل مور او پلار سره دعمرې طواف وکړ، سعي یې وکړه او تر سعي وروسته یې مور او پلار دهغې دحیض په راتلو خبر شول ، مور ترې وپوښتل دا ناروغي څه مهال شروع شوه ؟هغې وویل دطواف په مهال. ګواکې هغې دحیض په حالت کې طواف یا یې ډیره برخه کړې ده او سعي یې هم په دغسې حالت کې کړې ده . ددې لپاره حکم څه دی؟

ځواب : نجلۍ دې دعمرې احرام نه خلاصوي ، تر پاکې وروسته دې طواف او سعي بیا وکړي. دا چې احرام یې تر بلوغ وړاندې تړلی دی، نو وروباندې دجنایت دم نشته . دملا علي قاري په مناسک کې راغي :[که ماشوم دا احرام په ممنوعاتو کې دیوه ارتکاب وکړ د هغه په ذمه څه نشته.]

که څه هم دا ارتکاب تر بلوغ وروسته وي، ځکه هغه تر دې وړاندې (احرام تړلو په مهال) مکلف نه ؤ.(اپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۱۵)

مسئله :په حرمینو شریفینو کې دلمونځ کولو لپاره که کومه میرمن دحیض دمرض دمخنیوي لپاره کومه دوا استعمال کړي پروا نلري.(آپ کې مسائل ج ۱ ص ۱۰۹)

مسئله :میرمنو ته دحیض په مهال تر طواف وړاندې سعی کول جواز نلري،تر پاکیدلو وروسته دې طواف او سعی دواړه وکړي او احرام دې خلاص کړي .تردې وخته دې په احرام کې پاته شي.

مسئله: که د طواف په دوران کې ميرمنې ته حيض پيدا شي، طواف دې پريږدي کله چې له مرضه پاکه شي، دا طواف دې بيرته راوګرځوي. (ايضاح المناسک ص ۱۲۱)

مسئله: که ميرمن له حيض څخه داسې وخت پاکه شوه چې د دولسم تاريخ تر لمر لويدلو پورې دومره وخت پاته و چې غسل وکړي، مسجد ته لاړه شي، بشپړ طواف يا څلور شوطه وکړای شي او ويې نکړي، دم (وينه – قرباني) ورباندې واجب ده او که دغومره وخت نه و بيا ورباندې نشته. (معلم الحجاج ص ۱۸۰)

مسئله: که ميرمن پوهيدله چې حيض راځي او دومره وخت شته چې پوره طواف يا يې څلور شوطه کيدلای شي خو هغه يې ونکړ او حيض پيدا شو، بيا د نحر تر ورځو وروسته پاکه شوه، دم ورباندې واجب ده. که يې څلور ځله ګرځيدل کولای نشوای، نو څه ورباندې نه واجب کيږي.

(معلم الحجاج ص ۱۸۰ – منتخبات نظام الفتاوی ج ۱ ص ۱۵۶)

### ميرمن له احرام څخه دوتلو لپاره څومره ويښتان اخلي؟

پوښتنه: په حج کې سرې تر قربانۍ وروسته سرخريي. ميرمن به د سر ويښتان څومره غوڅوي او دا چې وروستني ويښتان به اخلي او که به د ټنډې ويښتان هم غوڅوي؟

ځواب: ديوې ګوتې دبند برابر، يعني ديوې ګوتې د دريمي برخي په اندازه به د ټول سر ويښتان اخلي. (فتاوی محموديه ج ا ص ۲۰۷)

(ميرمن به دخپل ټول سر ويښتان په موټ کې نيسي، لاندې به دګوتې ديوه بند په اندازه خپل ويښتان اخلي يا به يې بله ميرمن يا محرم غوڅوي. څومره عمرې چې کوي هغومره ځل دويښتانو اخستل ضروري دي او دغومره د حج په موقع غوڅيږي. قاسمي)



### که د زيارت د طواف په مهال حيض پيدا شي؟

پوښتنه: که د کومې ميرمنې دالوتکې تلل د ذي الحجې په دولسمه نيټه وي او د دې د حيض شپې وي، نو آيا هغه به د زيارت (حج) طواف پريږدي او هيواد ته لاړه شي او دم وکړي او که دواء يا بل څه استعمال کړي او طواف وکړي؟

ځواب: د زيارت طواف د حج يو ستر رکن دی. تر څو د زيارت طواف ونکړي، ميړه او ميرمن ديوه او بل لپاره حلال نه دي، بلکې په دې معامله کې احرام پاته دی. له همدې امله دې ميرمنې د زيارت طواف نه پريږدي. پرواز دې پريږدي.

مسئله: که څوک له دې طواف څخه پرته خپل هيواد ته لاړه شي، نو ورباندې لازم دی چې له نوي احرام تړلو پرته مکې مکرمې ته لاړ شي، د زيارت طواف وکړي. تر څو يې دا طواف کړی نه وي، د ميړه او ښځې تر منځ په تعلق کې دوی د احرام په حال کې دي. حج يې هم شوی نه دی او دا کوم بدل هم نلري. په دم سره کار نکيږي، بيرته تلل او طواف کول ضروري دي. (دځنډ له امله په سرې باندې دم هم واجبيږي.)

کومې ميرمنې چې په دې ورځو کې په مياشتنۍ مرض کې وي، هغوی دې تلل لغو کړي، تر څو چې پاکه شي، طواف دې وکړي او له مکې دې نه ځي. که وړاندې لا د حيض د مخنيوي کار کيدلای شي د هغې کول جائز دي. (آپ کې مسائل ج ۴ ص ۱۴۷)

مسئله: که د ميرمنې لپاره د حيض د مخنيوي د دوا استعمال

ضرر نه رساوو او هغه یې تحمل کولای شو ای او تجربه یې
هم پکې وه. د حیض د مخنیوي دوا استعمالولای شي.
(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۲۷۹ – ج ٦ ص ۴۰۴ – حج بیت الله کې اهم فتاوی ص ۵۳)

مسئله : که میرمن د حیض له امله د امهال د زیارت طواف
ونکړای شي، دم نه واجبیږي تر پاکیدلو وروسته دې د
زیارت طواف وکړي.(معلم الحجاج ص ۱۸۰)

مسئله : که د طواف په مهال اودس مات شي، هم د غلته
د طواف سلسله ختمول لازم دي. اودس دې وکړي او له هغه
ځایه دې پیل کړي. خو غوره داده چې طواف له سره پیل شي.
(په سعی کې اودس شرط نه دی.) (اوجز المناسک ص ۵۳۰)

### دمجبوري په مهال د حیض په حال کې د زیارت طواف کول

پوښتنه :نن سبا حج ته د تللو راتللو تاریخ له وړاندې لا
معلوم وي، تبدیلول یې ستونزمن او سړي ورسره پرېشانه
کیږي. نو ایا د داسې مجبورۍ له امله میرمن د حیض په
حالت کې د زیارت طواف کولای شي؟

ځواب : د حیض په حالت کې د حج د استر رکن (د زیارت
طواف) کول خورا ستره ګناه ده. د حدث اکبر (ناپاکې) په
حالت کې مسجد حرام ته ننوزي، هلته ډیر وخت تیروي.
دا چې په داسې حال کې مسجد ته ننوتل حرام دي، نو په
داسې حالت کې بیت الله شریف ته داخلیدل او د زیارت د
طواف په څیر مهم رکن اداء کول به څرنګه خوښ کړای
شي.نو ترپاکوالي وروسته به د زیارت طواف هغه کوي،نن



سبا جهازونه ډیر دي ، که کوښښ وکړي ورباندې کامیاب
کیدلای شي .له معلم یا نورو مسؤلینو سره لیدل هم کیدلای
شي، د دې حل وموميي، ناممکن نه دي. که هلته په پاته
کیدلو په مصارفو کې لاس تنګي پیښیږي، پور دې واخلي یا
دې مرسته وغواړي ، آن که یې روپۍ ختمې شې،په زکات
اخستلو کې هم دا کار جائز دی. دا ټول کارونه تر دې اسانه
دي چې د حیض په حالت کې د زیارت طواف وکړي . له ارامي
او سستې څخه دې کار نه اخلي. که په مسئله ونه پوهیږي او
داسې کار وکړي نو حکماً حج وشو. له احرام څخه هم میرمن
خلاصیږي، خو اوښ یا غوییی ذبح کول لازمیږي . نور دې
د دې طواف کولو حکم او فتوی نه ورکوي. او قصداً داسې
کار کول او بیا یې جزاء ورکول هیڅ کله جواز نلري او نه دا
ګناه په فدیه سره معاف کیږي.(فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۲۸۰)

### په سخته مجبورۍ کې د حل یوه لاره

یوه بله مسئله یوازې په میرمنو پورې ځانګړې ده . که
د نحر (لسم ،یوولسم ،دوولسم د ذې الحجې) په ورځو کې
میرمن د ناپاکۍ له امله د زیارت طواف ونکړای شي او
د دومره وخت د پاته کیدلو انتظام هم نه وي چې پاته شي،
پاکه شي او طواف وکړي ،خپل هیواد ته لاړه شي.نو دا
ستونزه رامنځته کیږي چې له پاکې سره د دې طواف موقع نه
ورته پیدا کیږي. فقهاوو ورته یوه شرعي لاره تجویز کړې ده.

په دې هکله د فقهي اجتماع د ۱۴۱۷ هـ ق کال (ذي قعده)
په غونډه کې په خورا احتياط سره دا تجويز ومنل شو:
که د زيارت تر طواف وړاندې کومې ميرمنې ته حيض
ورشي، داسې تدبير ورته اختيارول ضروري دي چې تر پاک
کيدلو وروسته، د زيارت طواف وکړي او وروسته له مکې
مکرمې لاړه شي. دا داسې چې د ټکټ او ويزې وخت ډير شي.
يا د حج کميته ورته د تللو تاريخ وځنډوي. يا بله لاره وسنجوي
خو که داسې کار شونی نه وي. يا له هيواد څخه ورته راتلل
هم ستونزمن کار دی.

نو که د حيض په حالت کې د زيارت طواف وکړي، سره له
دې چې هغه ګنهګاره کيږي، خو همدا د زيارت طواف يې
اعتبار لري او په بشپړه توګه حلاليږي، احرام يې خلاصيږي
او پابندي يې ختميږي. خو په دې حالت کې يوه بدنه يعنې
سترڅاروی (غويی يا اوښ) قرباني کول ورباندې لازميږي.
که دا قرباني ونکړي او کومه بله موقع همدا د زيارت طواف
وکړي نو د بدنې وجوب ترې ساقطيږي.

(نداي شاهي ص ۱۷۶ جنوري ۲۰۰۱ د حج او زيارت شماره)

د دې مسئلې تفصيل، په نظام الفتاوی، ج ۱ ص ۱۰۷
، شامي ج ۲ ص ۲۰۶، زبدة المناسک ص ۱۸۵ کې وګورئ.

(دوې فتوې ګانې موجودې دي، احتياط په لومړۍ او
سهولت په دوهمه کې دی. محمد رفعت قاسمي)



## د طواف اوه ډولونه او د هغوی حکم

مسئله: که د جنابت، حيض يا نفاس په حالت کې طواف
وشي، نو د اوو ډولو طوافونو حکم داسې دی:

۱- که جنوب، حايضه يا نفاسه د زيارت طواف وکړي، نو
د يوه غوايي يا اوښ بشپړه قرباني ورباندې لازميږي او
د حرم په حدودو کې به يې کوي. که په داسې حالت کې يې
درې شوطه يا زيات طواف وکړ نو دم (پسه، وزه يا د غوايي
او اوښ اووم حصه) ورباندې اوړي. که يې تر پاکې
وروسته دا طواف بيا وکړ نو دا جرمانه ترې ختميږي.

۲- د عمرې طواف: که څوک د حيض، نفاس يا جنابت په
حالت کې د عمرې طواف وکړي، نو جرمانه يې يو دم يعنې
(د پسه - وزې) قرباني ورباندې لازميږي، خو که تر پاکې
وروسته يې بيرته وکړي، دا ناغه يې ساقطيږي.

۳- د وداع طواف: په حائضې او نفاسې دا طواف واجب
نه دی، هغوی ترې معاف دي. خو که د جنابت په حالت کې
دا طواف وکړل شي، جزا يې يوه قرباني ده. که يې بيرته په
پاکې کې را وګرځوي دا جرمانه يې معاف کيږي.

۴- د نذر طواف: د نذر طواف (چې چا په ځان نذر منلې
وي) واجب دی، نو که چا د جنابت، حيض يا نفاس په حالت
کې وکړ، جرمانه يې يو دم (يوه قرباني) ده او که يې د پاکې
په حالت کې بيرته را وګرځوي دا جزا ورته معاف ده.

۵- دقدوم طواف: که دجنابت، حیض اونفاس په حالت
کې دا طواف وکړای شي، دم وربانـدې لازمیږي، کـه یې
دپاکې په حالت کې راوګرځوي بیایې جزا معاف ده.
٦- نفلـي طـواف. ۷- دتحیـة طـواف: ددې دواړو
طوافونو حکم دادی چې که دحیض، نفاس یا جنابت په حالت
کې وکړل شي دم (وینه- یوه قرباني) وربانـدې واجبیږي.
که یې راوګرځوي داجریمه (دم- قرباني) ترې ساقطیږي.
ځکه نفلي طواف هم دقدوم دطواف په څیر دی. (ندای شاهي دحج
اوزیارت ځانګړې شماره ص۱۵۷ جنوري ۲۰۰۱م، دغنیة المناسک ص۲۴۷ په حواله.)

### که دوداع دطواف په مهال حیض پیدا شي

مسئله: حائضه میرمن که دمکې مکرمې له ودانیو څخه
تروتلو وړاندې، له حیض څخه پاکه شي، په هغې واجب دي
چې بیرته وګرځي او دوداع طواف وکړي. (ترڅو یې ګرځیدل
په واک کې وي.) او که تر ودانیو ووتله او پاکه شوه، بیا
وربانـدې واجب نه دی. خو تر میقات تیریدلو وړاندې که له
کومې وجه بیرته راوګرځي طواف وربانـدې واجب دی.
(معلم الحجاج ص۹۰)
مسئله: که میرمن له حج څخه دبیرته وتلو په مهال حائضه
شوه، دوداع طواف یې وکړای نشوای، نه هلته ځنډیدلای
شوای، له میره یا بل محرم سره تله او طواف یې ونکړای شو
دم وربانـدې نشته. په حایضه میرمن باندې دوداع طواف
واجب نه دی، که موقع وه، تر پاکې وروسته ورګرځیدل او



طواف کول غوره دي. دا دوداع دطواف حکم دی خو دزیارت
دطواف حکم بیل دی. (فتاوی رحیمیه ج ۸ ص ۲۸۹)
مسئله: دحرم، حل او میقات په هستوګنو او حایضې،
نفاسې، مجنون او نابالغ دوداع طواف واجب نه دی.
(معلم الحجاج ۹ ص ۲۰۷)
مسئله: حایضه او نفاسه دې دوداع طواف نه کوي، تر
مسجد بهر دې دعا وکړي او رخصت دې شي. (معلم الحجاج ص۲۰۷)

### دمیرمنو دسر خریيلو ممانعت

دعلي او عایشې رضی الله عنهما څخه روایت دی چې
رسول الله صلی الله علیه وسلم میرمنې له سرخریيلو څخه منع
کړې دي. (مشکوة، حدیث شمیره ۲٦۵۳)
له ابن عباس رضی الله عنهما څخه حدیث روایت شوی
دی چې په میرمنو باندې حلق (سرخریيل) نشته، په میرمنو
یوازې ویښتان اخستل دي. (حدیث ۲٦۵۴)
وضاحت: دمیرمنې لپاره داحرام خلاصولو په مهال، له دوو
وجهو سر خریيل منع دي: یو دا چې دمیرمنې بڼه بدشکله کیږي،
صورت بدلول (مثله) منع ده.
دوهمه وجه داده چې دامیرمن له سړي سره ورته والی پیدا
کوي، میرمنو ته دسړیو بڼه غوره کول مطلقاً منع ده.
(رحمة الله الواسعه ج ۴ ص ۲۴۸)

## یوه اړینه لارښوونه

دحج داداري له لوري چې دحجاجو لپاره هستوګن ځایونه چمتو کیږي، هلته په یوه خونه کې څو کورنۍ وي ، دمحرم او نور څه خیال پکې نه ساتل کیږي. داخورا خوا پوري کوونکې او خطرناکه خبره ده .

لومړی خو دا هڅه وشي چې دمیرمنو او سړیو خونې بیلې ،بیلې وي په دې صورت کې به کومه ستونزه نه وي.

خو که داسې کیدلای نشي او په یوه خونه کې هستوګنه کوي، دڅادرونو په واسطه دې پردې واچوي تر څو تر یوه حده مخنیوی شوی وي او دحج په مبارک سفر کې له بدنظره او بې حیایې څخه خوندي وي.

دافسوس ځای دادی چې په عامه توګه حجاج دې ته هیڅ خیال نه کوي، پردی سړی او میرمن داسې اوسي، ګواکې سره سکنې (محرم) دي. ډیر وخت خو دپردي سړي او میرمنې تر منځ یوازېتوب هم راځي چې، داقطعاً حرام دی . د امکان تر حده له داسې بې احتیاطیو څخه ځان ساتل لازم دي.

میرمن دې خپل ویښتان هم دنامحرم له لیدلو څخه ساتي.

الله تعالی دې موږ ټول وساتي .آمین. (محمدرفعت قاسمي)



## دمیرمنو احرام

میرمن دې داحرام تړلو لپاره ګنډل شوي جامې نه لري کوي بلکې دهغوی احرام یوازې دادای چې سرپټ او مخ لوڅ کړي .
(نن سبا یو خاص ډول جامه چې میرمنې وریاندې دسر ویښتان بندوي، میرمنې یې داحرام په نوم یادوي، ددې کوم اصل نشته ددې جامې یا دسمال نوم احرام نه دی.)

- داحرام تر تیاري کولو وروسته، که مکروه وخت نه وي دوه رکعته نفل دې داحرام په نیت وکړي. غوره داده چې په لومړي رکعت کې دکافرون او په دوهم رکعت کې داخلاص سورت ووایي .
- که دامهال میرمنې دناپاکې په حال کې وي، لمونځ دې نکوي بلکې هسې دې داحرام نیت وکړي او تلبیه دې ووایي.
- سړی چې له لمانځه څخه فارغ شي له سر څخه به څادر لرې کړي، بیا چې دحج ددریو ډولونو څخه دهریوه اراده لري، دهغه نیت دې وکړي.مثلاً ،که یې دافراد دحج اراده وه نو داسې نیت دې وکړي:

اَللهُمَّ اِنِيْ اُرِيْدُ الْحَجَّ فَيَسِرْهُ لِيْ وَ تَقَبَّلْهُ مِنِيْ.

(ای الله!ما دحج اراده کړې ده ، هغه زما لپاره اسانه کړې او قبول یې کړي.)

او که یې دحج قران اراده وه نو داسې دې ووایي :

اَللهُمَّ اِنِيْ اُرِيْدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَيَسِرْهُمَا لِيْ وَ تَقَبَّلْهُمَا مِنِيْ.

(اى الله زه د حج او عمري دواړو اراده کوم، هغوى زما لپاره اسانه کړي او قبوله يې کړي.)

او که يې د حج تمتع اراده وه داسې دې ووايي:

اَللّهُمَّ اِنِّيْ اُرِيْدُ الْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهَا لِيْ وَ تَقَبَّلْهَا مِنِّيْ.

(اى الله زه د عمري اراده کوم، هغه زما لپاره اسانه کړي او قبول يې کړي.)

نن سبا ډير خلک حج تمتع کوي په دې کې آساني ده.

– تر دې وروسته دې سرى په زوره او ميرمنې په پټه ډول درې ځله تلبيه ووايي. د تلبيې الفاظ دا دي:

لبيک اللهم لبيک، لبيک لا شريک لک لبيک، ان الحمد والنعمة لک والملک لاشريک لک.

(حاضريم اي الله! زه حاضريم، ستا هيڅ شريک نشته، حاضريم ټولې ستاينې او ټول نعمتونه يوازې تا لره دي او ټوله پادشاهي تا لره ده، ستا هيڅ شريک نشته.)

– له نيت سره تر تلبيه ويلو وروسته، تاسو محرم سواست او د احرام ټولې پابندې شروع سوې. دا يادولرئ چې د احرام لپاره نه يوازې نيت کافي وي او نه هم يوازې تلبيه، بلکې تلبيه او نيت يو ځاى شرط دي.

– تر تلبيه وورسته، چې هره دعا غواړئ ويې کړئ، دا دعا مستحب ده: {اللهم اني اسئلک رضاک والجنة واعوذبک من غضبک والنار.}



(اى الله! زه ستا رضا او جنت غواړم او ستا له قهر او له دوزخ څخه پناه غواړم.)

– د احرام تر پېيل کيدلو وروسته، ډير شيان چې وړاندې رواوو، هغه هم حراميږي. مثلاً، خوشبويي لګول، ګنډل شوي جامې اغوستل، نوک يا ويښتان اخستل، سر يا مخ پټول، ښکار کول، له ميرمنې سره جماع کول يا د بې حيايي خبرې کول.

– د تمتع حج په صورت کې چې مکې مکرمې ته ورسيږئ تر طواف کولو وړاندې تلبيه ويل بنده کړئ. خو په حج افراد او قران کې دې تلبيه، د ذي الحجې تر لسمې د جمرې عقبې (ستر شيطان) تر ويشتلو جاري وي. تر هغه چې د تلبيه ويلو حکم وي په کثرت او ذوق سره يې جاري ولرئ. د ويلو په مهال يې معنى په ذهن کې ولرئ او دا تصور وکړئ چې يو بې وزله مين د خپل مهربان بادار دربار ته ځي.

## په بيت الله کې حاضري

– مکې مکرمې ته په رسيدلو، د هستوګنې او نورو په اړه د انتظام تر بشپړولو او بې غمې وروسته، تاسو حرم شريف ته د حاضريدلو لپاره تياريږئ.

– کله چې مو په بيت الله شريف سترګې ولګيږې، په ډاډه زړه د ژړا په بدرګه دعا وکړئ، دا د قبول موقع ده.

- که تاسو د حج افراد احرام وتاړه، بیت الله ته په حاضریدلو سمدستي به دقدوم طواف وکړئ، که مودتمتع یاقران حج احرام تړلی ؤ، بیا به لومړی دعمري طواف وکړئ.

د تمتع حج کوونکي لپاره دقدوم دطواف حکم نشته، خو څوک چي دقران حج کوي، هغه به ترعمري وروسته، دقدوم طواف وکړي.

- څوک چي دتمتع حج کوي، هغه به دطواف په دریو لومړنیو شوطونوکي رمل (په تیزي سره تلل) اوپه ټولو شوطونوکي به اضطباع (داحرام څادر تر ښۍ اوږي لاندي اوپه چپه اوږه اچول) کوي. بیابه دعمري دبشپړه کولو لپاره دصفا اومروه ترمنځ سعی کوي. دحج قران والا به هم داسي دعمري ارکان ترسره کوي.

- دحج افراد کوونکي که دقدوم ترطواف وروسته، دحج سعی کوي، هغوی به هم په طواف قدوم کي رمل او اضطبَاع کوي.

څرګنده دي وي چي رمل او اضطباع دسړیو لپاره په هغه طواف کي مسنون عمل دی چي ترهغه وروسته دسعی اراده لري.

- دمیرمنو لپاره درمل او اضطباع حکم نشته. (ځیني میرمني دسړیو په څیر رمل کوي، دا صحیح نه دي، هغه دي نکوي.)

- دطواف پیل او پای دحجرالاسود له استلام (ښکلولو) څخه کیږي. دحجرالاسود تر څنګ په ټول مطاف، یوه توره پټۍ جوړه شوي ده، دي پټۍ ته نژدي دي داسي ودریږئ چي



حجرالاسودیي ښي لورته وي. بیا دطواف نیت داسي وکړئ:

[ای الله! زه ستا دسپیڅلي کور داوه ځله ګرځیدلو دطواف نیت کوم، دا یوازي ستا درضا او خوشحالي لپاره، نو ماته یي آسانه او را څخه قبول یي کړه.]

- تر نیت وروسته ښي لورته شئ او له حجرالاسود سره بالکل برابر شئ، یعني مخ او سینه حجرالاسود ته مخامخ کړئ او په توره پټۍ ودریږئ، دلمانځه په څیر لاسونه اوچت کړي. {بسم الله، الله اکبر، ولله الحمد} ووایاست او لاسونه کښته کړئ.

- تر دي وروسته دحجرالاسود استلام وکړئ، صورت یي دادی چي که حجر الاسود ته درسیدلو موقع پیدا شوه، نو خپل مخ دلاسونو ترمنځ داسي کښیږدئ لکه په سجده کي چي اینښودل کیږي اوپه نرمه سره یي ښکل کړئ. خو که دګڼه ګوڼي له امله حجرالاسود ته ونه رسیږئ په توره پټۍ ودریږئ، له لري دواړه ورغوي دحجرالاسود لورته واړوئ او داتصور وکړئ، ګواکي لاسونه په حجرالاسود کښیښودل شول، بیا هغه ښکل کړئ. داستلام په مهال دا توري ولولئ:

الله اکبر، لا اله الا الله والصلوة والسلام علی رسول الله.)

له لري استلام کول هم دومره ثواب لري لکه له نژدي چي ښکل کړای شي، نو په ازدحام کي دنژدي ورتللو هڅه مکوئ. په تیره میرمني خودي له پرده وخلکو سره له نژدي والي ځان وساتي.

-تراستلام کولو وروسته، سمدستي مخ، سینه او
قدمونه دحجرالاسود بني لورته کړئ او تلل پیل کړئ. دتګ
په مهال مخ دبیت الله شریف په لور مکوئ، بلکي کښته ګورئ
او راګرځي.

-کله چي یو ځل ګرځیدل پوره شي او بیا هغي توري پټي
ته ورسیږئ، نو مخ او سینه دحجرالاسود لورته کړئ، استلام
وکړئ او ژر خپل حالت ته راشئ او داسي اوه ځله ګرځیدل
بشپړ کړئ.

-دطواف په اوه ځله ګرځیدلو کي به په اوداسه ګرځي، که
په لومړنیو څلورو شوطونو کي دچا اودس مات شي، اودس
دي وکړي او طواف دي له سره پیل کړي او که تر څلورو
شوطونو وروسته، اودس مات شي، بیا یي خپل اختیار دی
چي تر اودس کولو وروسته، بیرته طواف کوي او که هغه پاته
شوطونه پوره کوي.

-دطواف په دوران کي ذکر، تسبیحات، دیني خبري او که
یي کومي دعاوي یادوي، داهر څه کولای شي. معلومي
دعاوي ویل ضروري نه دي. هره دعا چي وایي داسي ورو دي
وایي چي، دنورو عبادت ته زیان ونه رسیږي. نن سبا چي په
طواف کي ګروپ جوړوي او په چیغو، چیغو دعاوي وایي
داطریقه بیخي غلطه ده.

-دطواف تر اوه ځله ګرځیدلو وروسته دوه رکعته واجب



الطواف لمونځ کول ضروري دی، خو که مکروه وخت ؤ،
طواف دي وکړي او دمکروه وخت تر تیریدلو وروسته دي
لمونځ وکړي، دهر طواف لپاره دي بیل، بیل دوه رکعته لمونځ
وکړي.

-دطواف په مهال دلمونځ کوونکي ترمخ تیریدل منع نه
دي، خو پرته له طوافه بنه داده چي له لمونځ کوونکي سره
نژدي تیر نشي، بلکي دسجدي له ځای څخه دي لري تیر شي.

-دطواف لمونځ له مقام ابراهیم (علیه السلام) سره کول مسنون
دی. په لومړی رکعت کي دکافرون سورت او په دوهم رکعت
کي داخلاص (قل هوالله) سورت وویل شي. که دګڼه ګوڼي له
امله، له مقام ابراهیم (ع) سره ځای نه وي، بیا هر ځای دطواف
لمونځ کیدلای شي.

-تر طواف وروسته له ملتزم (دحجرالاسود او بیت الله
ددروازي تر منځ نژدي دوه نیم ګزه دديوال برخي) سره لګیدل
او دعا کول مستحب دي. که موقع وه له دي ځای سره مخ،
سینه او ګیډه ولګوئ او چي کومه دعا موزره وي هغه ووایئ.
داددعا دقبول ځای دی. خو که څوک داحرام په حالت کي
وي، بیا دي ځان نه ورسره لګوي، ځکه داځای خوشبویي لري
او هغه داحرام په حالت کي په بدن وهل منع دي.

-تر طواف وروسته، دزمزم داوبو څښل سنت دي، دزمزم
دڅښلو په مهال چي کومه دعا کیږي هغه قبلیږي. انشاء الله.

## دصفا او مروه سعی

– تر طواف وروسته، که څوک سعی کوي، دحجرالاسود استلام په توره پتی به نیغ لاړ شي هغه لورته په څه واټن کي دصفا غونډۍ ده .

– صفا ته به دومره لوړیږي چي، بیت الله شریف ورته تر سترګو شي، نور پورته تلل مکروه دي . دلته به قبلې ته مخ کړي او دسعی نیت به وکړي ، داسي به لاسونه لوړ کړي لکه په دعا کي چي لوړیږي . دتکبیر تحرمي په څیر دي تر غوږونو نه لوړوي . ځیني بې خبره کسان یي دغسي لوړوي ، دلاسونو داوچتولو په مهال دي دعاکوي چي، داهم ددعا دقبول ځای دی.

– بیا به له صفا څخه دمروه په لوري ځي ،مروه ته په رسیدلو یو ځل پوره شو ، په مروه کي به هم دغسي لاسونه لوړ کړي او هغسي ذکر او دعا به کوي .

دصفا او مروه تر منځ چي پرې رنګه لایتونه لګیدلي دي، هلته به سړی تیز ځي چي داسنت ده .خو میرمني به په خپل حالت ځي، هغوی به منډې نه وهي ، دشنو ستنو ترمنځ به دا دعاوي وایي :[رب اغفروارحم انک انت الاعزو الاکرام]

[ای الله ! په مغفرت او رحمت مي ونازوه ، بیشکه ته په تولو غالب او ډیرکرم کوونکی یي .]



– دسعی په مهال که اودس پاته نه شو نو اودس کول لازم نه دي، که اودس وکړي او بیا راشي ، له پیله به بیا سعي نکوي بلکي پاته ګرځیدل به پوره کوي ، که دسعی په پیل کي اودس مات شي او که وروسته توپیر نلري .

– کله چي له سعی څخه فارغ شي په مسجد حرام کي دوه رکعته نفل کول هم مستحب دي . دالمونځ تر سرخرییلو وراندي کیږي.

– دادي معلومه وي چي سعی یوازي دحج یا عمري له ارکانو سره مشروع ده ، له حج او عمري پرته نفلي سعی کول ثابت نه دي . ځیني خلک دسعی کولو په مهال لیدل کیږي . هغوی دافکر کوي چي دنفلي طواف په څیر سعی هم کیدلای شي ، خو داناپوهي ده.

## دسر خرییل یا کوچنی کول

دسعی تر بشپړولو وروسته، عمره کوونکی متمع حاجي دي سر وخریي یا دي ویښتان لنډ کړي او احرام دي پرانیزي.

مسئله :داحرام دپرانستلو لپاره میره خپلي میرمني او پلار دخپل لور ویښتان دګوتي دیوه بند په اندازه اخستلای شي، داکار میرمني هم کولای شي.(آپ کي مسائل ج ۴ ص ۱۴۴)

– ځرګنده دي وي چي له سرخرییلو یا کمولو پرته داحرام قیدونه نه ختمیږي. له حنفي مذهب سره سم، لږتر لږه دسر دڅلورمي برخي خرییل یا کمول لازم دي، دټول سرخرییل یا

لنډول سنت دي . خو دا د سړیو لپاره او د میرمنو لپاره د ګوتي
دیوه بند په اندازه د ویښتانو اخستل دي.

– حج یا عمره کوونکي چي ټول ارکان اداء کړي، یوازي
سرخرییل یا کوچني کول ورته پاته وي. خپل ویښتان په خپله
هم کولای شي او د خپل محرم ملګري ویښتان هم کولای
شي .خو د ویښتانو ترکمولو وړاندي دي نوکان یا نور څه نه
کموي، کنه وړباندي دم اوړي.

### تر عمره وروسته په مکه معظمه کي هستوګنه

– د عمري تر بشپړولو وروسته، تمتع حج کوونکی
حلالیږي . په مکه مکرمه کي د هستوګني خیال وساتئ ، ډیر
طوافونه ، په حرم کي په جماعت سره لمونځونه او د تلاوت او
د ذکر به ډیر اهتمام کوئ ، دلته د هري نیکي ثواب سل زره
(یولک) ګونه ترلاسه کیږي.

– که غواړئ په دي وخت کي نفلي عمري هم کولای شي.
په دي صورت کي د حرم له حدودو بهر له تنعیم (د عائشي (رض)
مسجد) یا له جعراني او نورو ځایونو احرام تړل کیږي.

### منی ته تلل

– د یوم الترویه، یعني د ذي الحجي داتمي ورځي په شپه
منی ته تلل پیل کیږي . د دي لپاره د ذي الحجي داوومي نیټي
له ماښامه، داحرام او نورو تیاري بشپړي شي، تر څو د معلم
د بسونو له نظام سره سم منی ته ولاړ شي .ځکه بي خبرو خلکو



ته د معلم له بسونو پرته، منی ته تلل ډیر ستونزمن وي ، خو
څوک چي بلد دي، هغوی د اتم تاریخ د سهار ترلمانځه
وروسته په اطمینان سره منی ته تلای شي.

– د حج احرام که څه هم په مکه معظمه کي په خپل
هستوګن ځای کي تړل کیږي، خو مسجد حرام ته تلل هلته نیت
او تلبیه ویل افضل او غوره دي.

– څوک چي د زیارت تر طواف وروسته له ګنه ګوني څخه
ځان ساتي، هغوی ، نن یو نفلي طواف (له رمل او اضطباع
سره) کوي، د حج سعی وړاندي هم کولای شي، که دا مهال
سعی وکړي نو بیا وروسته د سعی کولو اړتیا نشته.

– منی ته په تللو یوه جوړه جامه ،بدنی ،دپُزي
فرش،چترۍ، داوبو ترموز دخوړلو څه وچ شیان (بسکیت یا
بل څه) ضروري سامان یوړل شي، زیات څه وړل ضرور نه دي.

– په منی کي له اتم تاریخ څخه د نهم تاریخ تر سهاره، پنځه
لمونځونه اداء کول مسنون دي.

– په منی کي خیمي د اورضد تیاري شوي دي ، د کولر هم
انتظام شوی وي ،خو دا ټول یو ډول معلومیږي نو حجاج دي
خپلي خیمي سمي وپیژني .له خپلي خیمي دي ډیر لري نه ځي،
کنه د ورک کیدلو ویره ډیره وي او حجاج دي د خپلي
پیژند ګلوی کارتونه تل له ځان سره ولري.

– په خیمو کې دې سړي او میرمنې یو ځای نه وي، په
مابین کې دې څادر واچوي، ځایونه بېلول ضروري دي.
دذي الحجې له نهم تاریخ د سهار له لمانځه څخه د دیارلسم
تاریخ د مازدیګر تر لمانځه پورې دې تر فرض لمانځه وروسته
سړی په زوره او میرمنې ورو یو ځل د تشریق تکبیرونه [الله
اکبر، الله اکبر ، لا اله الا الله والله اکبر، الله اکبر ولله الحمد]
وایي، دا واجب دي.

## دعرفات په میدان کې

– عرفات ته، دمعلم د بسونو تلل دشپې پیل کیږي، خو
سنت داده چې د سهار لمونځ وشي او عرفات ته روان شي.
– عرفات ته دتللو په مهال په ذوق او شوق سره تلبیه وویل
شي ، دمیني په فضاء کې د الله تعالی د رحمت په هیله کې وي
او دعرفات قصد وشي. ځکه همدا ورځ دحج ټول حاصل دی.
– په عرفات کې که دخپل ځای معلومات وړاندې لا وشي نو به
آساني وي. ډیر وخت دمعلم بسونه دترافیکو دازدحام له امله
دومره ځنډ کوي چې، دوقوف وخت په بسونو کې په کښیناستلو
ضائع کیږي. که دهستوګنې ځای معلوم وي، نو ځینې خلک پیاده
کیږي او هستوګن ځای ته په خپله ځي، له منی څخه دټکسي
موټرونو په واسطه هم ځي.
– دعرفې وقوف چې فرض دی تر زوال وروسته پیل کیږي. ښه دا
چې تر زوال وړاندې تیاری وشي تر څو وروسته وخت ضائع نشي.



– په دې ورځ چې څوک دنمره په مسجد کې دعرفات په
امام پسې لمونځ کوي، هغوی دماسپښین او مازدیګر
لمونځونه یو ځای ماسپښین کوي. خو کوم کسان چې په خپلو
خیمو کې په انفرادي یا اجتماعي توګه لمونځونه کوي،
هغوی ته هر لمونځ په خپل وخت ضرور دي. که هغه په
ماسپښین کې دمازدیګر لمونځ وکړي، ګواکې دمازدیګر
لمونځ یې کړی نه دی. ددې مسئلې ډیر خیال ساتل په کار دي
ځکه ډیر خلک په منظم ډول، ټولو خلکو ته دجمع بین
الصلوتین تلقین کوي. خو احناف په دې تلقین دعمل کولو
اجازه نه ورکوي.
– داسې معلومیږي چې نن سبا دعرفات امام له نجد څخه
راځي، هغه مسافر وي او په عرفات کې دماسپښین او
مازدیګر لمونځونه په قصر (دوه ،دوه رکعته) کوي. نو هغه
حجاج چې همدا ورځ مسافر دي، هغوی دې له امام سره سلام
وګرځوي او کوم حجاج چې مقیم دي. (ترحج پنځلس ورځې
وړاندې په مکه مکرمه کې هستوګن شوي دي.) هغوی دې
دامام تر سلام اړولو وروسته، په دواړو لمونځونو کې خپل
نور دوه رکعته لمونځ پوره کړي.
– دلمر تر لویدلو په عرفات کې وقوف واجب دی.
– دعرفات ټول وخت په دعا ، ذکر، تلبیه او نورو عباداتو
تیر شي. چاچې دعرفات په امام پسې لمونځ کړی وي، هغه

دي لمونځ نه کوي .خود خیمو هستوګن که له ماسپښینه تر
مازدیګره څومره لمونځونه کولای شي ودي کړي.ددي
ورځې دا ارزښتمنه شیبې دي په بسي سره نه ضائع کوي.
تر غروب وړاندي دمعلم استازي، حجاج په بسونو کي
کښینوي، که په بس کي څوک کښیني هم له ذکر او دعا څخه
دي غفلت نه کوي. دابسونه تر غروب وړاندي له عرفات څخه
وتلای نشي.نو هلته په چوکیو ناست دي دعا ، تلبیه او ذکر
کوي. (که څوک له عرفات څخه ترغروب وړاندي ووزي
وربادي دم اوړي.)

– تر لمر لویدلو اودشپي ترراتللو وروسته هم په عرفات
کي دماښام لمونځ نه کوي.

## مزدلفي ته تلل

– دلمرترلویدلو وروسته، له عرفات څخه دمزدلفي په لور
حرکت کیږي، چي مزدلفي ته ورسیږي هلته ماخستن دماښام
او ماخستن لمونځونه یوځای کوي،ددي لمونځونو یوځای
کول په ټولو ضروري دی،که هغه یوازي لمونځ کوي او که په
جماعت .

– په مزدلفه کي دا شپه خورا مبارکه ده، ځیني علماء خو
یي دقدر تر شپي غوره بولي، په دي شپه کي له ستړیا سره
،سره عبادت کول ډیر ثواب لري.هسي په خوب ضائع نشي.
په مزدلفه کي په خلاصه فضا کي هرڅوک په خپل پڅي (بوریا



فرش) شپه تیروي.له ډیرو انتظاماتو سره ، سره داوبو
کمښت محسوسیږي، ښه داده چي له عرفات څخه لاداوبو
اونور څه غم وخوړل شي، څه دخوړلو څښلو شیان ورسره
یووړل شي.

– داحنافو په نزد ، دمزدلفي دوقوف وخت له سپید وترلمر
ختلو پوري دی. له دي امله وختي دسهار لمونځ وشي او تر
ډیره په مزدلفه کي وقوف وکړي په زاریو ،زاریو دعا وکړي.

– په مزدلفه کي دقبلي دمعلومولو لپاره اسانه لاره دا ده
چي بیت الله شریف ته نژدي، په یوه غونډۍ باندي یو برج
دی،هلته وربانـدي سپین ګروپ دی.داد مکي معظمي
خواوشا په څو میله کي تر سترګو کیږي. دشپي له خوا د
مزدلفي په هرځای کي، دي لایت (ګروپ) ته په کتلو دقبلي
لوری معلومیږي.

مسئله :اوه ډبري په لومړۍ ورځ (لسم تاریخ) یوازي
جمره عقبی دویشتلو لپاره دي ، نور په یوولسم او دوولسم
تاریخ یوویشت ډبري دري جمري یعني هره یوه په اوو ، اوو
ډبرو ویشتله کیږي.(معلم الحجاج ص ۱۶۸)

– په مزدلفه کي ، درمي (ویشتلو) لپاره دنخود ددانې په
اندازه ډبري ټولي شي او که ناپاکي وي په اوبو ومینځل شي.

## له مزدلفي څخه بېرته تلل

- د ذي الحجي په لسمه د مزدلفي تر وقوف وروسته منى ته حركت كيږي.
- كه همت وي او په منى كي ځاى درته معلوم وي، ميرمني او نور د رسره نه وي نو له مزدلفي څخه منى ته د بسونو تر سفر پياده تلل سهولت دي، په دي سره وخت سپميږي.

## بيا په منى كي

- منى ته په رسيدلو تر هرڅه وړاندي، جمره (ستر شيطان) ويشتل دي. نن سبا دلته خورا ګڼه ګوڼه وي، په دي ازدحام كي د كمزورو او ميرمنو كار نه دی، ډير وخت تر مړيني پوري خطر وي. نو د ډير شوق په واسطه ځان هلاكت ته دا چولو په ځاى، لومړى په منى كي په خپل هستوګن ځاى كي ارام وكړئ. غرمه يا تر هغه وروسته په ارام او ډاډ سره رمي وكړئ. په تيره كمزورو خلكو خو ډير فكر كول په كار دي.
- كه يوازي د حج احرام وي نو تر رمى (جمرو ويشتلو) وروسته حلق يا قصر وشي او احرام خلاص شي. ميرمنو ته حلق جواز نلري، يوازي دومره دي وكړي چي د سر د ويښتانو سرونه د ګوتي د بند په اندازه كم كړي.
- كه احرام د تمتع يا قران حج وي، نو لومړى به واجب قرباني كوي، بيا به سر خريي.



- د احنافو په نزد له مفتى به قول سره سم، د قارن او متمتع لپاره، رمى، قرباني او حلق په ترتيب سره واجب دي. هڅه وشي تر څو همدا ترتيب وساتل شي. خو كه څوك د كمزوري يا د سعودي د نويو قوانينو او يا بل عذر له امله ترتيب ساتلاى نشي، نو د صاحبينو او دري ګونو امامانو په قول ورباندي دم نه اوړي.

## د زيارت طواف

- تر قرباني او حلق وروسته، د زيارت د طواف لپاره مكي مكرمي ته ځي، دا طواف فرض دی او له لسمي بيا تر دوولسمي نيټي تر لمر لويدلو پوري كيږي.
- كومه ميرمن كه ناپاكه وي، دا مهال دي د زيارت طواف نكوى، په منى كي دي پاته شي او تر پاكوالي وروسته دي طواف وكړي. په دي ځنډ كي ورباندي كومه جريمه نشته. كه يي مخته د حج سعى كړي نه وي، نو د زيارت تر طواف وروسته دي سعى وكړي.
- د منى دورځو (١٠-١٢) د شپي ډير وخت په منى كي تيرول سنت ده.

## رمى جمار (د شيطانانو ويشتل)

- په يوولسم او دوولسمه نيټه، تر زوال وروسته، جمري ويشتلي كيږي. په دي كي دي هم د ازدحام په مهال بيړه نه كيږي، په ارامي دي ځي، وروسته دي هغه وولي.

– په دې دواړو ورځو کې تر زوال وړاندې، د جمرو ویشتل جائز او اعتبار لري. دا دې په یاد وي.

– کمزوري خلک او میرمنې که د شپې جمرې وولي ورته مکروه نه دي. نو که څوک د جمرو په ویشتلو قدرت لري، د هغوی په ځای د نورو ویشتل صحیح نه دي. تاسې دا فکر کوئ، ډېر کسان له حقیقي عذر پرته جمرې د شپې ولي، د دې خلکو رمی اعتبار نلري او د رمې د پرېښودلو له امله ورباندې دم اوړي.

– ډبرې به داسې ولئ چې په هغې دایرې کې ولګیږي، بهر لاړې نشي.

– د جمره عقبه او وسطی تر ویشتلو وروسته مخ په قبله دریدل او دعا کول سنت دي. د وروستنۍ جمرې تر ویشتلو وروسته د دعا کولو حکم نشته.

– په منی کې خاصې ورځې، د الله ذکر ورځې دي. په دې دوره کې د عبادت اهتمام وشي. د دین د خپرولو په هکله هم فکر وشي.

– د ذي الحجې په دوولسمه نیټه، تر لمر لویدلو وړاندې، له منی څخه د مکې معظمې په لور حرکت کوي.

– که څوک د دیارلسمې نیټې تر سپیده وړې په منی کې پاتې شي، نو د دیارلسم تاریخ د جمرو ویشتل هم ورباندې واجب کیږي.



## مکې معظمې ته بیرته راتلل او د وداع طواف

– مکې مکرمې ته په راتللو، کوم کسان چې سمدستي خپل هیواد ته تلل غواړي، په هغوی باندې تر تللو وړاندې د وداع طواف واجب دی. که پرته له عذر څخه یې پرېږدي، دم ورباندې اوړي.

– د طواف زیارت تر کولو وروسته، که چا نفلي طواف کړی وي، هغه د وداع د طواف ځای نیسي.

– که څوک له طواف څخه پرته ترمیقات بهر لاړ، په هغه دم واجبیږي. له دم څخه د خلاصیدلو لاره دا ده چې بیا د عمرې احرام وتړي، حرم ته راشي، لومړی عمره وکړي او بیا د وداع طواف. یوازې د وداع د طواف لپاره، د عمرې له احرام تړلو پرته راتګ منع دی، دا خبره یاده ولرئ.

– کومه میرمن که د بیرته تللو په مهال ناپاکه وي، په هغې باندې د وداع طواف ته ځنډیدل نشته. هغه د وداع له طواف څخه پرته خپل هیواد ته تللای شي.

– په مکه معظمه کې چې څومره وخت څوک پاتې کیږي هغه وخت دې غنیمت وګڼي، د ډېرو طوافونو او عمرو کولو اهتمام دې کوي. په ژوند کې دا موقع بیا، بیا نه ترلاسه کیږي. د بیرته تللو په مهال دې د خفګان او خواشینې څرګندونه کوي، له بیت الله څخه دې له زاریو او ژړا سره بیرته ځي.

الله تعالی دې په خپل فضل او مهربانۍ سره موږ هلته په ادب سره په حاضریدلو ونازوي. آمین یا رب العلمین. محمد رفعت قاسمي.

## متمع حج ته يو ځغلند نظر

۱– له ميقات څخه احرام وتړئ.

۲– مکي ته په راتلو طواف وکړئ. (دا اوه ځله ګرځيدل دي، له حجرالاسود څخه پيل او په هغه ختميږي. د دې لپار[illegible] هلته په فرش د پاسه يوه پنډه کرښه ده او ورسره په ديوال باندي يو شين رنګه راډ دی.)

۳– تر طواف وروسته، دوه رکعته لمونځ واجب دی. (پ[illegible] مکروه وخت کي يي سمدستي مکوئ، کله چي مکروه وخ[illegible] تير شي بيا يي وکړئ.) دا دوه رکعته مخ په کعبه له مقا[illegible] ابراهيم(ع) سره وکړئ. بيا د زمزم اوبه وڅښي او سعی ته لا[illegible] شي. سعی له صفا څخه پيل تر مروه پوري يو ځل تلل دي[illegible] همداسي اوه ځله ګرځيدل پوره کړئ. دوه رکعته لمونځ وکړ[illegible] او بيا به سر وخريئ. ميرمني دي يوازي د ګوتي د بند په انداز[illegible] ويښتان غوڅ کړي. دا عمره وشوه، احرام خلاص کړئ[illegible] همداسي د تمتع حج کيږي.

اوس تاسي په مکه معظمه کي په خپلو جامو کي اوسيږئ[illegible] طواف کول، هلته ستر عبادت طواف دی، څومره وخت چي [illegible] فرض او سنتو د رته پاته کيږي، هغه په طواف تيروئ[illegible] وخت په حرم کي تيروئ. تر څو ذي الحججي اتمه نيټ[illegible] را ورسيږي. په اتمه نيټه طواف وکړي، سعی وکړي او منی ت[illegible] لاړ شئ. (دا "سعی مقدم" شوه.)



د ذي الحججي د اتمي له ماسپښينه بيا د نهمي نيټي تر لمر راختلو پوري په منی کي اوسئ او د لمر په راختلو عرفات ته روان شئ. تر زوال وړاندي عرفات ته ځان ورسوئ. هلته څه وخت دوري را دوري شئ تر څو د ماسپښين وخت راشي. بيا د ماسپښين لمونځ وکړئ. (که يي په امام الحج پسي کوئ، د ماسپښين او ماز ديګر لمونځونه يو ځای پسي وکړئ. خو که په خپله خيمه کي لمونځ کوئ، يوازي د ماسپښين لمونځ وکړئ.) بيا وقوف وکړئ، دعا کوي، طيبه، شهادت، تمجيد، استغفار کلمي چي څومره کولای شئ، ويي واياست. په ولاړويي واياست که ستړي شوئ، کښيني او واياست يي.

د ماز ديګر وخت چي راشي د ماز ديګر لمونځ وکړئ. بيا تر ماښامه همدغسي په ذکر او دعا لګيا اوسئ. تر څو لمر ولويږي. تر لمر لويدلو وروسته، د مزدلفي په لور حرکت وکړئ، د ماښام لمونځ اوس مه کوئ. په مزدلفه کي ماختن، د ماښام او ماختن لمونځونه يو ځای وکړئ. بيا که غواړي بيده شئ، خو بيداري غوره ده. په تسبيح، درود او استغفار لګيا اوسئ. تهجد وکړئ. تر څو سپيدي وچوي، د سهار لمونځ په غلس (تياره) کي خو تر سپيدو وروسته وکړئ. وقوف وکړئ، ودريږئ تر ډيرو دعا کوئ.

دا د ذي الحججي لسمه ورځ ده. دلته په مزدلفه کي ډبري ټولي کړئ، ۴۹ يا ۷۰ داني (نهه څلويښت يا اويا داني)

داحتیاط لپاره خو داني زیاتي درسره واخلئ. له دي ځایه حرکت وکړئ، منی ته لاړ شئ. جمره عقبه اوه ډبري وویلئ. بیرته راشئ، په منی کي قرباني وکړئ او سر وخریئ. اوس احرام خلاص کړئ او جامي واغوندئ، مکي ته راشئ دزیارت طواف وکړئ. دا طواف رکن (فرض) دی.

تر طواف وروسته بیا منی ته لاړ شئ، شپه هلته تیره کړئ. سهار دذي الحجي په یوولسمه نیټه، تر زوال وروسته، لومړنی شیطان اوه ډبري وویلئ. یوه لورته شئ دعا وکړئ. بیا دوهم اوه ډبري وویلي او دعا وکړئ. بیا دریم وویلئ خو دعاء مکوئ، بیرته راشئ: اوس بیا شپه په منی کي پاته شئ.

دذي الحجي په دوولسمه نیټه، تر زوال وروسته، همداسي جمري وویلئ او شپه په منی کي تیره کړئ. دذي الحجي په دیارلسمه نیټه، همداسي جمري وویلئ او مکي معظمي ته بیرته راشئ.

که په دوولسمه نیټه جمري وویلئ او مکي معظمي ته بیرته راشئ هم جائز دي. خو تر لمر لویدلو وړاندي به له منی څخه وزئ. مکي ته راشي. حج هم بشپړ شو.

"دمولانا محمود حسن ګنګوهي، ددارالعلوم دستر مفتي له بیان څخه." (النور میاشتنی، جنوري ۲۰۰۲ م)



## دحج مناسکو ته یو نظر

| لومړی ورځ | دوهمه ورځ | دریمه ورځ | څلورمه ورځ | پنځمه ورځ |
|---|---|---|---|---|
| -له مکي څخه منی ته تلل.<br>-په منی کي ورځ<br>-ماسپښین<br>-مازدیګر<br>-ماښام<br>-ماخستن<br>-شپه په منی کي. | -دسهار لمونځ په منی کي کول او عرفات ته تلل.<br>-دماسپښین لمونځ په عرفات کي.<br>-دعرفات وقوف.<br>-ماديګر په عرفات کي<br>-مزدلفي ته تلل.<br>-دماښام او ماخستن لمونځونه.<br>-په مزدلفه کي شپه. | -په مزدلفه کي لمونځ او منی ته تلل.<br>-دلوی شیطان ویشتل.<br>-قرباني کول<br>-حلق یا قصر کول<br>-احرام پرانستل<br>-دزیارت طواف.<br>-منی کي شپه کول. | -په منی کي تر زوال وروسته رمی.<br>-کوچنی شیطان ویشتل.<br>-منځنی جمره.<br>-ستر شیطان ویشتل.<br>-که طواف پاته وي هغه کول.<br>-شپه په منی کي. | -په منی کي تر زوال وروسته رمی.<br>-منځنی جمره<br>-کوچنی شیطان ویشتل<br>-ستر شیطان ویشتل<br>-که طواف پاته وي هغه تر ماښام وړاندي کول<br>-په ۱۳ که دپاته کیدو اراده وي تر زوال وړاندي جمري ویشتل |

## دماشومانو حج

حج تر بلوغ وروسته فرضیږي، خو لکه څرنګه چي دماشومانو لمونځ او روژه صحیح ده، هغسي یي حج هم صحیح دی. که هغه ماشوم هر څو مره کوچنی هم وي او که دومره وي چي عقل او تمیز ولري.

په مسلم شریف کي له ابن عباس (رضی الله عنهما) څخه روایت شوی دی چي، یوه میرمن له خپلو ماشومانو سره د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) حضور ته راغله او پوښتنه یي وکړه : یا رسول الله! ایا ددوی هم حج شته؟ رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ارشاد وکړ:

" هو او تاسو ته یي ثواب رسیږي. "

له دي حدیث شریف څخه دا څرګندیږي چي، دماشومانو حج صحیح کیږي او دماشومانو د حج ثواب مور، پلار او قریب ته هم رسیږي.

دسایب بن یزید (رض) بیان دی چي زما عمر اوه کاله ؤ چي زه مي پلار له ځان سره د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په ملګرتیا حج ته بوتلم او حج مو اداء کړ.

دا چي په ماشومانو حج فرض نه دی، نو ځکه یې حج نفلي کیږي او تر بلوغ وروسته که حج ورباندي فرض شي بیا به حج کوي. حج کوونکی ماشوم یا ماشومه که ډیر کم عمر وي او نه پوهیږي، نو دهغه مور، پلار یا بل قریب دي دهغه د احرام



نیت وکړي. خو دا احرام واجب نه دی. که یي د احرام نیت ونشي هم کومه خبره نشته. بیا دي ولي دهغه له لوري د حج ټول احکام او افعال اداء کړي او هغه ماشوم دي له هغو ټولو خبرو ساتي کوم چي حاجي ته یي ځان ساتل ضرور دي. په طواف کي دي دهغه د ځان او جامو د پاکوالي خیال وساتل شي. که د احرام خلاف کومه خبره یا کار تري پیښ شي، په ولي باندي یي کوم دم نشته. خو که ماشوم یا ماشومه هوښیار وي، د ښه او بد تمیز کولای شي، بیا دي د مور یا پلار په اجازه احرام وتړي، داو داسه، پاکي او ناپاکي فکر دي کوي او دهغو ټولو خبرو اهتمام دي کوي چي یو احرام والا سړی یا میرمن یي کوي. کوم افعال چي ماشوم په خپله کولای نشي، لکه د جمرو ویشتل، هغه دي ولي وکړي. خو د عرفات وقوف، په منی او مزدلفه کي شپي تیرول، طواف، سعی او نور دي وکړي. کي یي کولای نشوای، مور، پلار یا ولي دي په غیږ کي واخلي یا دي په اوږه سپور کړي طواف او سعی دي ورباندي وکړي. د طواف او سعی په وخت دي د ځان او ماشوم نیت وکړي، تر څو ددواړو له لوري اداء شي. که له ماشوم څخه د احرام خلاف کوم څه پیښ شي، نو په ماشوم یا دهغه له لوري په ولي یي کوم دم (وینه – قرباني) نشته. ماشوم چي کوم افعال سرته رسوي، ثواب یي ورته رسیږي. انشاء الله. (محمد رفعت قاسمي غفرله.)

**که ماشوم ورسره بوزي ايا تر بلوغ وروسته ورباندي حج فرضيږي؟**

پوښتنه : ماشوم له ځان سره حج ته بيول مناسب نه دي ځکه دبيت الله په ليدلو حج ورباندي فرضيږي، که هغه بالغ شي او شتمن نه وي مړ شي ايا ګنهګار دی؟

ځواب : که ماشوم حج ته بوتلل شي، تر بلوغ وروسته ورباندي حج نه فرضيږي . هو که تر بلوغ وروسته شتمن شو نو ورباندي حج فرضيږي. دا دشمتني له امله، پخواچي يي کعبه ليدلي ده له هغه امله ورباندي نه فرضيږي.

(امداد الاحکام ج ۲ ص ۱۶۳)

مسئله : که ماشومان بوتلل شي ، دهغوی هم حج کيږي، مور اوپلار ته يي هم ثواب رسيږي، کوم افعال چي هغه کولای نشي ،مور ،پلار (ياهغه څوک چي بيولی يي وي) دي وکړي. مثلاً لبيک دي دهغه له لوري ووايي . رمی دي دهغه له لوري وکړي، هغه دي په غيږ کي واخلي طواف او نورڅه دي اداء کړي ، احرام دي وتړي ، که ماشوم خورا کوچنيی وي، يوازي جامي لري کول (لوڅول) يي هم کافي دي. (الجواب المتين، ص ۲۰)

(که ماشوم جامي هم لري نکړي، بيا هم ورباندي دم نشته.

ماشوم چي څومره دحج افعال سرته رسوي، هغومره ثواب مومي.) (محمدرفعت قاسمي غفرله)

**************



**دبالغ اولاد حج**

پوښتنه : چاخپل بالغ زوی يا لور حج ته بوتلل او حج يي وکړ .ايا هغه حج نفل کيږي؟

ځواب : که يي پيسي دهلک يا نجلۍ په ملکيت کي ورکړي، نو حج ورباندي فرضيږي او حج يي هم کيږي.

(آپ کي مسائل ج ۴ ص ۳۷)

مسئله : چا که دپلار په موجوديت، دپلار په شتمني حج وکړ، دپلار تر مړيني وروسته چي همدا شخص يي دمال وارث دی ، که يي پخواني حج تر بلوغ وروسته وُ نو فرض حج يي اداء شوی دی بيا ورباندي حج فرض نه دی.

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۵۳۰ درد المحتار کتاب الحج ج ۲ ص ۲۰۱ په حواله)

**دنابالغه ماشوم حج**

پوښتنه :زما دحج اراده ده، له ماسره دوه نابالغ ماشومان، يوولس کلن اوديارلس کلن دي.دهغوی فرض حج کيږي که نفلي؟

ځواب :دنابالغ حج نفلي کيږي، تر بلوغ وروسته که هغوی وس درلود ، په هغوی حج فرضيږي.(آپ کي مسائل ج ۴ ص ۳۷)

مسئله : که ماشوم حج وکړ اوهغه دپوهي خاوند وُ چي دحج داعمالو په مقصد پوهيده حج يي کيږي ،خو دحج فريضه ورباندي نه ساقطيږي. (ځکه هغه نابالغ دی.)

مسئله :که کوم ماشوم نه پوهيږي او دحج ورځي راغلي، د هغه دحج داعمالو اداء کول دهغه دولي په ذمه دي، په حديث شريف کي راځي :

"که ماشوم لس حجونه هم وکړل خو چې بالغ شي ورباندې لازم دی چې اسلامي حج اداء کړي. (که یې وس وي.)

مسئله: دحج دوجوب په شرایطو کې یو هم عقل دی، نو پر مجنون (لیوني که څه هم بالغ وي) حج فرض نه دی او نه یې حج کول صحیح کیږي، هغه په دې هکله دناپوه ماشوم په شير دی.

مسئله: دحج دفرضیت یو شرط ازادي ده، نو پر غلام باندې حج لازم نه دی. (کتاب الفقه ج ۱ ص ۱۰۳۵، فتاوی محمودیه ج ۱۷ ص ۱۸۹)

مسئله: پلار یې موره ماشوم پرېښودلای او حج کولای شي. دپلار تر تللو وروسته دماشوم ولي یا تره دې دهغه روزنه وکړي، خو دماشوم لګښت دې پلار ور کړي.
(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۵۳۳)

مسئله: که کوم لیوني دحج احرام وتاړه او دعرفات تر وقوف وړاندې جوړ شو، لیونتوب یې ختم شو. که یې بیا احرام وتاړه حج یې کیږي، خو که یې احرام ونه تاړه نو فرض حج یې ادا نشو. (معلم الحجاج ص ۷۷)

مسئله: نابالغ به په بلوغ او مجنون به په جوړیدلو بیا حج کوي، خو چې قدرت ولري او شرایط برابر وي.

مسئله: که دا احرام تر تړلو وروسته، څوک لیونی شو، یا د احرام تر تړلو وړاندې لیونی ؤ، د احرام په وخت کې سم شو، د احرام نیت یې وکړ او تلبیه یې وویله بیا لیونی شو او ولي یې ورسره دحج ټول افعال اداء کړل، نو دده فرض حج وشو، خو تر جوړیدلو وروسته دې دزیارت طواف په خپله وکړي. (معلم الحجاج ص ۸۸)



## دنابالغه ماشوم احرام

نابالغه ماشوم که هوښیار وي او پوهیږي نو په خپله دې احرام وتړي او دحج افعال دې اداء کړي. دبالغ په شير دې افعال ترسره کړي، که ناپوه او وړوکی وي، دهغه ولي دې دده له لوري دهغه احرام وتړي.

ناپوه کوچنی که په خپله دحج افعال ترسره کړي یا احرام په خپله وتړي، دا افعال او احرام نه صحیح کیږي، خو پوه ماشوم که احرام وتړي او افعال ترسره کړي صحیح کیږي.

مسئله: دپوه ماشوم له لوري دې دهغه ولي احرام ونه تړي.

مسئله: پوه ماشوم چې کوم کارونه په خپله کولای شي، ودې کړي او که یې کولای نشوای ولي (سرپرست) دې وکړي. خو دطواف لمونځ دې په خپله وکړي، ولي دې نه کوي.

مسئله: پوه ماشوم دې په خپله طواف وکړي او ناپوه دې په غېږ کې واخلي طواف دې ورباندې وکړي، دا دعرفات دوقوف، سعی او رمی حکم هم دی.

مسئله: ولي ته ضرور ده ترڅو ماشوم له ممنوعاتو څخه منع کړي. که ماشوم کوم ممنوع کار وکړي، دهغه جزا په ماشوم او ولي نه لازمیږي.

مسئله: ماشوم ته احرام لازم نه دی، ماشوم که ټول افعال پرېږدي یا ځیني پرېږدي، په هغه باندې کومه قضاء او جزاء نه واجبیږي.

مسئله :ولي چي له ورسره ملګرو، ورته ډیرنږدي وي هغه دي دماشوم احرام وتړي . مثلاً، که پلار او ورور دواړه ورسره وو ،که یې پلار ورته احرام وتړي غوره ده . که یې ورور یا بل څوک وتړي هم جایز دی.

مسئله :دمجنون (لیوني) حکم په ټولو احکاموکي دناپوه ماشوم په شیر دی .که څوک د احرام تر تړلو وروسته لیونی شو،یا که د ممنوعاتو مرتکب شي په جزاء کي یې اختلاف دی .خو که احتیاطا یې جزا ورکړل شي غوره ده،حج یې بلا اختلافه صحیح دی.

مسئله :که تر احرام تړلو وړاندي لیونی ؤ ، ولي دهغه له لوري ورته دده احرام وتاړه، بیا جوړ شو .که تر جوړیدلو وروسته، په خپله بیا احرام وتړي او د حج افعال اداء کړي نو فرض یې اداء شو .(معلم الحجاج ص ۱۹۰)

مسئله :بي عقل ،لیونی ،ماشوم او بي هوښه که بالکل رمی ونکړي (شیطانان ونه ویلي) فدیه وربانديي نه واجبیږي.

(معلم الحجاج ص ۸۷)



## دحج دبیان لنډیز

که غور وشي، دحج دسفر حیثیت دتربیي او روزني یوه دوره ده .هرحاجي ګواکي دشریعت له لوري په یوه جوړشوي تربیتي مرکز کي برخه اخلي. په دي مرکزکي هرشخص خپل انانیت (ځان غوښتنه) ختموي او دخپل ژوند په هره ګوښه کي، دالله تعالی دحکم دجاري کولو روزنه ورکوله کیږي.لکه له احرام څخه چي ډیر حلال شیان دالله تعالی په حکم ورته منع کیږي او دتلبیي په بیا ،بیا ویلو محرم اعلانوي چي هغه له خپل زړه او دماغ څخه، دغیرالله دحاکمیت فاسد خیال لري کوي.بیا دبیت الله شریف طواف، دصفا او مروه ترمنځ سعی، د منیٰ په وادي کي حاضري، دمجنون په شیر دعرفي په لور خوځیدل، په عرفات کي له امام سره دماز دیګر لمونځ ماسپښین مهال اداء کول. دالله تعالی په دربار کي له الحاح او زاریو سره دعا کول ، بیا مزدلفي ته تلل دماښام لمونځ ماخستن اداء کول. په لسمه نیټه دجمري ویشتل او دالله تعالی دلویي په اقرار له شیطان څخه دبیزاري څرګندونه. دالله تعالی لپاره قرباني کول او دزیارت طواف.

ددي ټولو افعالو او مناسکو یو ، یو جزء دا راته یادوي چي موږ ازاد نه یو، بلکي داحکم الحاکمین داحکامو پابند یو ، له دي امله په قرآن کریم کي چي چیري دحج داحکامو یادونه کیږي، هلته په تقوی ډیرتاکید شوی دی.

لنډه دا، کوم کسان چي د حج د سفر د نیک مرغي په ترلاسه کولو برخمن کیږي، هغوی دي له دي ځانګړتیا سره دا لاربښووني په نظر کي ولري بلکي په ټول ژوند کي یي د عملي کولو وعده وکړي.

په اصل کي دا د حج روح ده. علماء او مشایخ لیکي چي د مقبول حج نښه دا ده چي حج دانسان په ژوند کي د دیني انقلاب ذریعه شي. که یي وړاندي دالله تعالی یا د بندګانو په حقوقو کي څه کمښت کړی وي یا وړاندي اخته وي، تر حج وروسته ور څخه تائب شي. که خدای جل جلاله مکړه له چا سره په زړه کي کینه او کرکه لري، تر حج وروسته ورته زړه د هنداري په څیر پاک کړي. که یي لمونځ نه کاوو، لمونځ کوونکی تري جوړ شي. که یي د سنت خلاف کارونه کول، تر حج وروسته هغه پریږدي او داسي نور...

دا هغه معیار دی چي د دي په رڼا کي د حج هر قصد کوونکی دا معلومولای شي چي حج یي قبول شوي او که قبول شوی نه دی.

الله تعالی دي ټول د حج په قبول سره ونازوي. د امت هر وګړی دي له کتاب او سنت سره ملګري ولري او په هغوی دي د عمل کولو توفیق ورکړي. آمین. ربنا تقبل منا انک انت السمیع العلیم.

دعاغوښتونکی: محمد رفعت قاسمي، د دیوبند د دارالعلوم خادم
د ۱۴۲۹ هـ کال د ذي قعدي، ۵ - د ۲۰۰۸ کال د نومبر ۵، د جمعي شپه.
د ژباړي پای: ۵ محرم ۱۴۳۱ هـ ق، جدي ۱۳۸۸ هـ ش